# کندهار

د ۱۳۹٤ش کال دوهمه گڼه

(جوزا - سرطان)

د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست دوې میاشتنۍ خپرونه



د ډاکټر عبدالرازق پالوال پنځه اویایمه کلیزه دې بښادمنه وي

ليکوال: ډاکټر مبارک علي
ژباړه: بارکوال مياخېل

# مړه ژبه

ژبه د ټولنيزو او کلتوري ارزښتونو او روايتونو پانګه ده، چې د يوې ټولنې فکرونه، تصورات، احساسات او ذهنيتونه منعکسوي. د يوې ځانګړې ژبې ادب د هغې ژبې مړښت او خوځښت څرګندوي. که يوه ژبه د رښتيني ادب په توليدولو کې تر شا پاته وي او نوي لغات او اصطلاحات پکښې نه پيدا کېږي، دا څرګندوي چې هغه ټولنه څومره ځای پر ځای ولاړه ده.

دا د پوهانو دنده ده چې خپله ژبه په نويو افکارو شتمنه کړي او په خلکو کې ژبنی شعور او پوهه پيدا کړي. د خپورو ورو کلتوري ډلو په را غونډولو او په يوه ملي چوکاټ کې د يو ځای کولو په چاره کې ژبنی ملتپالنه ډېر مهم کار تر سره کوي.

د فرانسې د ۱۹۸۹م کال تر انقلاب وروسته د هغه ځای انقلابي حکومت فرانسوي ژبه ملي ژبه کړه او د ټولو ژبنيو ډلو د يووالي په خاطر ئې نوري ژبې په زوره له مخه وايستې. بل مثال د جرمني دئ چې پر ډېرو کوچنيو واکمنيو او کوچنيو مملکتونو وېشل سوی وو، پوهانو او مفکرينو ئې پخپلو هڅو د نويو افکارو په وسيله د جرمني ژبې د غښتلتيا له پاره يو ملي شعور پيدا کړ. د دوی د هڅو بريالی نتيجه دا سوه، چې نه يوازې جرمنيان په سياسي توګه سره يو موټی سول، بلکې په ژبني لحاظ هم سره يو سول.

جرمني ژبې ډېر غني ادبيات توليد کړل او د فرانسوي ژبې تسلط ئې ختم کړ، چې د اشرافي او لويو طبقو د خبرو ژبه وه. عربو پوهانو هم کټ مټ همدا لاره خپله کړه، عربي ژبه ئې غني او ځواکمنه کړه او په کافي اندازه ئې د عربي ملتپالني ريښې ټينګې کړې، چې ټول عربي ژبې هيوادونه ئې له ځانه سره پيوند کړل.

د هند په براعظمګي کې بنګالي پوهانو بنګالي علمي ژبه کړه. پوهان د نويو افکارو او تصوراتو په موندلو سره د ژبې په وده کې ډېر مهم رول تر سره کوي، دوی په همدې وسيله خپلو خلکو ته ژبنی هويت او پېژندنه ورکوي.

يو بل اړخ چې د ژبې ظرفيت او صلاحيت ورسره وده کوي، له نورو ژبو د مهمو کتابونو را ژباړل دي. په جاپان کې د دې نوي زمانې په لومړيو کې د لوېديځو پوهانو آثار جاپاني ژبې ته و ژباړل سول او بالاخره هغوی په ټولنيزو او طبعي علومو کې خپل آثار وليکل.

همدارنګه په ايران کې هم د لوېديځ ادب، تاريخ او ساينس په ډېر مهارت سره و ژباړل سول، ورسره په څنګ کې ايراني ليکوالو د علم په هره څانګه کې خپل آثار هم وليکل او فارسي ژبه ئې تر لوړې کچې د علم او فرهنګ ژبه کړه.

# کندهار






علمي، تاريخي، ادبي او ټولنيزه مجله

د امتياز څښتن: د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ رياست

دريمه دوره
د ۱۳۹۴ش کال دوهمه ګڼه (غبرګولی - چنګاښ)
پرله پسې ٦٩ مه ګڼه



**څو ضروري يادوني**

- کندهار مجله اسلامي او ملي ګټو ته زيانمني ليکني نه خپروي.
- کندهار مجله د مجلې د ټاکني ليکني معيار سره سم د ليکنو په اصلاح کي د لاسوهني حق لري.
- را استول سوي ليکني بيرته نه ورکول کېږي.
- هره ليکنه د ليکوال خپل نظر څرګندوي.

**په هيواد او دباندي کي د مجلې بيي**

هيواد: ۲۰ - افغانۍ

پاکستان: ۵۰ - کلداري

**کلنی ګډون**

هيواد: ۱۲۰ - افغانۍ

پاکستان: ۳۰۰ - کلداري

نور هيوادونه: ۸۰ - امريکايي ډالره

پته
علامه حبيبي واټ
د اطلاعاتو او فرهنګ رياست
د کندهار مجلې دفتر
ټليفون: ۳۰۰۱۴۴۰

# فهرست

## څېړنه



## شعرونه



## ترجمه



## خاطري

د یادښت پر ځای:

# تر لږ ځنډ وروسته ...

له تېرو پنځو میاشتو څخه کندهار مجله پر خپل وخت و علاقمندانو ته و نه رسېده، علت ئې ځیني تخنیکي او مالي خبري وې، خو د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست د ولایت مقام په مرسته یاده ستونزه حل کړه، او دا دئ مجلې دوباره خپل فعالیت شروع او په هرو دوو میاشتو کي به د علاقمندانو تر لاسونو ورسېږي.

د یوې مجلې یا بلې هري مطبوعاتي وسیلې د چلولو له پاره یوازي مادي او مالي خوا ضروري نه ده، بلکي د دې تر څنګ د سیمي د خلکو په خاصه توګه پوهانو، عالمانو، لیکوالو او شاعرانو مرسته او کومک حتمي و ضروري دئ، دغسي مرستي که د مضامینو د برابرولو په برخه کي وي او یا د تخنیکي مشکلاتو د حل په موخه وي، د یوې نشریې د پر وخت چلولو تضمین کوي. کندهار مجله له تېرو څو پرله پسې کلونو راهیسي په هرو دوو میاشتو کي یو ځل چاپېږي، که غواړو دغه حالت په عادي ډول دوام وکړي، نو نه یوازي خپلي لیکني او تحقیقات تر موږه راورسوئ، بلکي د دې تر څنګ موږ په خپلو تعمیري نظریاتو او نیوکو هم ونازوئ، تر څو د مجلې د نور پرمختګ او ښه ترا ځلېدني په موخه استفاده څني وکړو.

کندهار مجله د دغي سیمي د کلتور، تاریخ، ادب او نورو اجتماعي خواوو د ځلوني او روڼوني له پاره متعهده ده، د خپرولو له لومړي پیله ئې د یادو ساحو په باب مواد تهیه کړي او خپاره کړي دي، تر دې وروسته به هم خپل تعهد ته وفاداره وي، تر څو د دغي سیمي هنري، کلتوري، تاریخي و ادبي بریاوي په هغه شکل تر اولسه ورسوي څنګه چي ښایي. په دې لاره کي به د خنډونو سره مخ کېږي، خو هڅه به مو دا وي چي یادي ستونزي او خنډونه هغه کي تخنیکي وي یا مالي تر خپله وسه او ستاسي د همکارۍ په نتیجه کي له منځه یوسو.

د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست به تر خپله وسه کوښښ وکړي، چي په راتلونکي کي مجله پر ټاکلي وخت تر علاقمندانو پوري ورسوي، خو د خپلو لیکوالو او پوهانو څخه مو هیله دا ده چي د مجلې د کیفیت د لوړولو له پاره دي زموږ لاسنیوی وکړي، تر څو د دوی د وړاندیزونو، نیوکو او معنوي همکاریو په رڼا کي دغه اوسنی حالت په نوي او پرمختللي وضعیت بدل کړو.

د مجلې د ښې راتلونکي په هیله



ليکوال: استاد محمدمعصوم هوتک/ کاناډا

# د ډاکټر عبدالرزاق پالوال صاحب

## پنځه اويايمه کليزه دي بښادمنه وي

غوښتل مي د ښاغلي استاد ډاکټر عبدالرزاق پالوال په وياړ سيمينار ته يوڅه وليکم. په دغه ښار (آشاوا) کي زما د استوګي مېني ته نږدې د انټاريو جهيل پر غاړه يو له چوغه بوغه خلاص پارک دئ، دغه پارک ته ووتلم. په جهيل کي مي د اوبو پر غاړه د سپينو مرغانو د پورته و کښته کېدو په ننداره کي د ذهن په ثبت سوو پاڼو کي د کندهار د شپېتو کالو پخوا کلافصيل ورقه راسربېره سوه. دا وخت زه د اتو کالو وم. د هغه وخت کندهار پخپله اندازه کي نسبتاً خواپاکی، د اوسېدونکو پر طبعه برابر د ګوزارې وړ ښار وو. د ښار خلک چي دي سره پلټلي واي، هرومرو به پر يوه سر خپلوان سره وختل. که به خپلوان نه ول، خو په کوڅه، بازار او ناحيه کي ګاونډيتوب او پېژندنه له نيکه څخه لمسيو ته پاته وه. د کوڅو اوسېدونکو، د بازار دوکاندارانو، د مسجدو ملاامامانو ټولو يوه له بل سره له پلار و نيکه څخه پېژندل. د کابل دروازې په شمالي کلافصيل کي زما د مور ني نيکه مولوي صالح محمد هوتک کور وو. د کلافصيل لمرخاته ته د احمدشاهي ښار کلا ولاړه وه او کورونه ئې د کلا لمر لوېده خوا ته پراته ول. خو زما د نيکه کور په کلا کي دننه او د کلا د خندق پر سر ودان سوی وو. دغه محکه د نادرخان په پاچهي کي زما نيکه ته د سرکار له خوا په معارف کي د ده د خدمتو د قدرداني له اسيته وربخښل سوې وه. مور ته د هغه وخت

سرکاري مقامات بې قدره او خپل چاروکي راپېژندل سوي ول، دا خبره به یو څه حقیقت هم لري، خو داسي مثالونه زیات دي چي هغوی د پوهانو او د ملت د خدمتګارانو قدر د هغو په ژوند کي کاوه.

د کلافصیل په دغه برخه کي د پاتاو په نامه لویه واله هم بهېدله. پاکي، تکي شنې اوبه پکښې جاري وې. ځینو خلکو د چښنګ له پاره لا هم کار څني اخیست. د پاتاو پر جنوبي غاړه د مولوي عبدالواسع شهید په لاس ودان سوی مسجد واقع وو چي اوس هم ولاړ دئ. د دغه مسجد د حجرو مخ ته د پاتاو پر غاړه د اوداسه له پاره د لرګو ګودر هم جوړ سوی وو. څو زینې ورکښته کېدلې. د ګودر پر دواړو غاړو د کابلي توت دوې درختي ولاړې وې او له توتو څخه ئې د ملا په اجازه خلکو استفاده کوله. د کوڅې کوچنیان به په غلا هم ورختل او توت به ئې پکښې خوړل. د مسجد ملا وچکی، ډنګری، خوش طبیعته سړی وو. ملا نواب نومېدی. پلرنۍ مېنه ئې په پنجوایي کي وه، خو ده ته دلته د عبدالواسع اخندزاده د مشر زوی عبدالخالق اخندزاده واسعي له خوا د مسجد د امامت چاري ورسپارل سوي وې. ارواښاد واسعي چي به په سفر کي نه وو، د مسجد امامت ئې پخپله کاوه.

د دغه مسجد شمالي خوا ته د پاتاو پر غاړه د یوه متقي، پټ خولي، له بدو بېزاره او د کلک استقامت خاوند حاجي صاحب کور وو. حاجي صاحب د ورځي له خوا په کوڅه کي لږ لیده کېدی. دوکان ئې د کابل دروازې په جنوبي راسته کي وو. عطاري ئې کوله. سهار

به په خړه له کوره ووت. لمونځ به ئې یا پخپل مسجد، یا د صوفیانو په مسجد کي کاوه. تر لمانځه وروسته به دوکان ته ولاړ. د قرآن عظیم وظیفه ئې په دوکان کي تر چایو دمخه کوله. بیا ئې د ماخستن تر اذانه دوکان کاوه. په دغه ډول ئې پنځوس کاله له همدې مهالوېش سره سم د عزت او تقوا ژوند تېر کړ. دغه نېک صفته او نېک خصلته پښتون حاجي عبدالخالق نومېدی او د ډاکټر عبدالرازق پالوال پلار وو.

ز ه چي به په کوچنيوالي کي د نیکه کره ورغلم، له دغه کوره به یو دریشي پوښه، فېشني، ښایسته ځوان راووت او ماماخېلو به مي راته ویل چي دغه ځوان د میرویس لېسې له ډېرو لایقو اول نمره ګانو څخه دئ. وروسته داسي پېښه سوه چي د پالوال صاحب دوه ورونه مرحوم فدامحمد او ښاغلی عبدالقادر پالوال زما همصنفیان سول. فدامحمد مکتب تر پایه ونه وایه، خو عبدالقادر پالوال زموږ د ټولګي دوهم نمره وو. د کابل پوهنتون د ساینس پوهنځی ئې ولووست. د کندهار په عالي دارالمعلمین کي استاد وو او د لیاقت، ډیسیپلین او ښه تدریس شهرت ئې د کندهار په معارف کي ثبت دئ.

ډاکټرعبدالرازق پالوال د افغانستان په سطحه کي د نُخبه ګانو په کتار کي راځي. د لیکوالۍ شهرت ئې په پوهنځي کي د تحصیل له زمانې څخه لا خپور سوی وو. لیکني ئې په هماغه وخت کي لا هم درنې او پخې وې. د افغانستان د ژېپوهني د اطلس په پروژه کي چي د ملګروملتو په اراده او لګښت پر مخ بېول

کېدله، یو فعال او زیارکښ غړی وو. دی د ژبپوهنې د متخصص په توګه پېژندل سوی وو او هیله هم داسې کېدله چې پې ایچ ډي به هم په ژبپوهنه کې واخلي. نه پوهېږم چې توکمپوهنې ته ئې څه راز مخ وراوښت؟ د ډاکټر پالوال صاحب د (معیاري پښتو) په نامه کتاب د پښتو ژبپوهنې له ممتازو آثارو څخه دئ. دا کتاب که له (ښارناپُرسان) پرته بل ځای او بل چا لیکلی وای، هنګامو به ئې وطن پر سر اخیستی وای. د کندهار پوهنتون خوانو استادانو ته مې سپارښتنه دا ده چې د دغه کتاب له فیض څخه خپل محصلین بې برخې نه کاندي.

ډاکټر پالوال صاحب په خواني کې شعر هم وایه او په طلوع افغان او نورو خپروونو کې به ئې خپراوه. زه د ښوونځي په اووم ټولګي کې وم او یو شعر مې په طلوع افغان کې خپور کړ. دا شعر راسره نسته خو موضوع ئې زموږ د ټولني او نورو پرمختللو ټولنو یوه مقایسه وه چې په (دلته او هلته) افاده سوې وه. په دې ډول چې (دلته) موږ داسې خوار او وروسته پاته یو او (هلته) هغوی هاسې په نس ماړه او په تعلیم سمبال دي. د شعر تر نشر وروسته استاد تومیالي صاحب راته وویل چې دغه مفهوم خو پالوال صاحب هم په شعر کې راوړی دئ. ما د پالوال صاحب د شعر په باب ناخبرتیا وښووله. تومیالي صاحب راته وویل چې دغه راز پېښې ته په ادب کې (توارُد) وایي. زه بیا هم د کندهار پوهنتون د ادبیاتو له استادانو څخه هیله کوم چې یوه محصل ته د مونوګراف لیکلو پر وخت د ډاکټر پالوال صاحب د دغو خپرو سوو اشعارو د راغونډولو موضوع وټاکي.

زه له بده مرغه اوس په داسې موقعیت او حالت کې نه یم چې د ډاکټر پالوال صاحب پر آثارو دې تفصیلي لیکنه وکاندم. په رشتیا سره ځان مقصر راته ښکاري، خو له دې سره سره ښاغلي ډاکټر صاحب ته د پوره روغتیا او سلامتیا هیله لرم او د کندهار پوهنتون د پاچاخان علمي مرکز دغه اقدام د ډېرې ستاینې وړ بولم چې د ډاکټرپالوال صاحب په ژوند ئې د هغوی علمي خدمتو په ویاړ دغه سیمینار جوړ کړی دئ. برې دې مل وي.

آشاوا ـ کاناډا

۱۰/جون/۲۰۱۵ع

***

ټولوونکی: حاجي محمد رزمي

## ګل خبرې

- ځینې کسان خپل روح خرڅوي او په هغو پیسو ارام وجدان رانیسي.
- له دوو شیطانانو څخه زه تل هغه یو انتخابوم چې پخوا مې نه دئ ازمویلی.
- هغه زړه چې له ښکلا سره مینه لري هیڅ وخت نه زړېږي.
- ښه ملګری هغه سوغات دئ چې ته ئې خپل ځان ته ورکوې.
- ډېره هغه مالیه ده چې وجدان ئې د ګناه په مقابل کې ورکوي.

***

لیکوال
ځېړندوی شېرشاه رشاد

# د دروند پالوال صاحب په اثارو کې څېړنیزه لاره

ډېر پوهان او څېړونکي پر دې باندې په یوه خوله دي چې د څېړنې لویه موخه د هغه رشتیا یا حقیقت موندنه ده، چې تر هغه ګړې پورې څېنو او یا ډېرو ته پټ او ناڅرګند وي. د څېړنې ډولونه خورا په پېخر دي، خو له لویه سره د کار د ډول له مخې پر دوو ډلو وېشل کېږي: لومړی ډول ئې کتابتوني (کتابخانه اي)، دوهم ډول ئې سیمه ایز (ساحوي) او دریم ډول ئې ګډ چې هم کتابتوني او هم سیمه ایز دواړه اړخه لري.

د ښې څېړنې په ځانګړنو کې دا راوړي چې څېړنه باید پر سیستم باندې، پر منطق باندې، پر مشاهده او تجربه باندې ولاړه، مستنده، مستدله او دقیقه وي. د څېړنې اوږد او پېچلې بهیر ډېر زغم او تفکر ته اړتیا لري او ځیني څېړونکي او پوهان خو لا دا نظر لري چې د څېړنې د کړکېچن بهیر تر علمي اړخ د هنري اړخ پیاوړتیا ګټوري پایلې لري، خو که دواړه اړخه یعني علمي او هنري اړخونه سره مله سي، نو څېړنه بیا په هغوني اندازه پیاوړې او منطقي راځي.

ډاکتر صاحب پالوال د خپل علمي ژوندانه په اوږده بهیر کې چې ګرده ژوند ئې ورته ځانګړی کړی دئ، د څېړنې په هر ډول کې ئې د کمال او جمال یعني بشپړتیا او ښکلا تر حده پورې ګټورې او په زړه پورې څېړنې تر سره کړې دي. په کتابتوني (کتابخانه اي) څېړنه کې د ډاکتر صاحب پالوال "د پښتنو نوی پخوانی تاریخ" او "پښتو نوی مصدر" ډېر غنیمت آثار دي او د خپلې څېړنې د تر سره

کولو له پاره ئې پر خپل دې اصل باندې ټينګار کړی دی، چې: "... دمخه تر دې چې موږ د تضاد په منځ کښې ودرېږو باید دا مو له ځانه سره منلې وي چې موږ په ړندو سترګو د پخوانيو یا اوسنيو اصولو او احکامو طرفداري نه کوو، بلکې ځان ته د واقعبينو انسانانو په توګه قایل یو".

او ډاکټر صاحب پالوال خپل یو بل اصل داسې بیانوي:

"... موږ باید نه له زړو شیانو څخه نفرت ولرو او نه د نوو شیانو په مقابل کې حساسيت څرګند کو. دواړه زموږ د ژوندانه د پرونيو او ننني شرایطو محصول دي... هر څه چې موږ د تحول وړ بولو باید د اوښتني له پاره ئې عوض یا بدیل ولرو، څو ځای ئې و نیسي.... د مثال په توګه موږ د خرافاتو تر نامه لاندې ډېر بې ځایه او غیر ضروري توکي لرو چې دغه واقعيت خلک هم مني خو څنګه چې ئې موږ مناسب او موزون عوض نه دئ پیدا کړئ نو دوی هم د موږ کانو، لړمانو او نورو خسمانانو غوندي د ننه په کور کې راسره اوسېږي".

د دغو اصولو په رڼا کې د ربښتیا او واقعيت د موندنې له پاره ډاکټر صاحب پالوال یوازې د هیواد په کتابخانه اې موادو بسنه نه ده کړې، بلکې د امریکا او جرمني په کتابتونو کې هم په هغو موادو پسې لالهانده او سرګردانه ګرځېدلی دئ چې د پښتنو د پخواني تاریخ نوي څرکونه لاس ته راوړي. په دې اړه د پښتنو د نوي پخواني تاریخ د اثر په سر کې یو ځای کاږي:

"ما د دغه اثر د لومړي، دوهم او درېیم ټوک مواد د ۱۹۹۱-۱۹۸۶ (کلونو) تر منځ د هایدلبرګ پوهنتون له عمومي کتابخانې څخه د سهیلي اسیا موسسې له کتابخانې څخه د اسلامي مطالعاتو او وړاندني ختیځ ځانګو له کتابخانې څخه، د پخواني تاریخ ځانګې له کتابخانې څخه راغونډ کړي دي. دغه راز مې هم د هامبورګ پوهنتون د پخواني تاریخ ځانګې له کتاخانې څخه کله کله ښه استفاده کړې ده. ډاکټر پېټر سنای، په هایدلبرګ پوهنتون کښې د بشرپوهنې استاد له خپلې ځانې کتاخانې څخه هم آثار امانت راکړي دي".

دغه د زړه په دوک راټول سوي مواد چې ډاکټر صاحب پالوال په هر ځای کښې کتابچې - کتابچې په ډکې کړي وې، هم په ژبنيو او هم په کلتوري معلوماتو کې د لسهاو او کېدای سي د سلهاوو کتابونو د لنډو یادابښتونو داسې په زړه پوري ټولګه وه چې په ډېر عمر به ئې څوک راټولولو ته بیا نه وخت ومومي او نه به زړه ورته ښه کړي. له دغو کتابچو څخه یوه ډکه بسته (بېګ) د ایران په تهران کښې غلو ورڅخه یووړه. دغه کتابچې د پنځلسو کالو د څېړنې د زیار، ستړیا او ستومانۍ ټولګه وه. ډاکټر صاحب په خپلو یادابښتونو کې کاږي:

"... دغه کتابچې زما د پنځلسو کالو کار ؤ او هم دوې قلمي نسخې ورسره وې. دا هاله چې زه په ۱۹۷۷ کال د مې په میاشت کې له امریکا څخه و افغانستان ته پر لاري وم او شپه مې په تهران کښې سوه. زه باید په سبا د آریانا

په الوتکه کښې و کابل ته تللی وای. خو کله چې په شپه کښې د کتابچو بیگ غلو راڅخه وېوړئ، زه ناروغ سوم او یوه اونۍ په تهران کښې پاته سوم او هم د خپلي ورکي په تلاښ کښې وم. دغسي مي څلور پلاوي ډېر ډېر کتابونه له کوره را څخه ورل سوي دي".

په سیمه ایزه یا ساحوي څېړنه کي د ډاکټر صاحب د افغانستان د آریاني ژبو د اتلس سترې کار او تلاښ وو چي دی ئې د هېواد له یوه کونجه تر بله کونجه، د بدخشان له واخانه نیولې د نیمروز تر چاربورجکه پوري، له نورستانه نیولې د هرات تر لوېدیځو پولو پوري، مرکزي افغانستان، کاپیسا، پروان، کندهار، فراه، نیمروز، روزگان او نوري ډېري سیمي گزوپل کړي دي او د څېړني له پاره دا گرده سفرونه څه اسان او هوسا کار نه وو. نه هغسي ټرانسپورتي وسایل ول لکه اوس چي سته او نه هغه هوسایي وې چي اوس میسري دي، خو بیا هم ډېر سفر ئې پر بودوو باندي کړی دئ او د خپلي مېني او ټاټوبي میني هر څه په منلي ول.

دغي مېني د اروپا او امریکا په ظاهره هوسا او آرام ژوند څخه زړه توری کئ او بېرته خپلي خاوریني کوډلي ته د خدمت له پاره راغی. سپېڅلی څښتن دي له روغ صحت سره اوږد او مثمر ژوند ورپه برخه کړي چي له فکري هستونو او ایجاداتو څخه ئې موږ ټول وگړي نور هم مستفید سو.

پای

ټولوونکی: حاجي محمد رزمي

## گل خبري

- د بانک جوړول او د بانک وهل یو له بل سره څه توپیر لري؟
- یوازي کاچوغه ښه پوهیږي چي د دېگ په تل کي څه شي سته.
- ژوند د استاد په مخ کي د ویلون د ږغولو په شان دئ چي د وخت په تېرېدو سره زده کېږي.
- د هنر تاریخ د انسان د راژوندي کېدو تاریخ دئ.
- په نړۍ کي داسي څه نسته چي د علاقې وړ نه وي خو کېدای سي چي بې علاقې سړي وجود ولري.
- هغه څوک چي په حل نه پوهیږي هغه اصلاً په پرابلم سم نه پوهېږي.
- ژوند د حقیقت او درواغو داسي مجموعه ده چي کله درواغ په حقیقت بدلېږي او کله هم برعکس.
- څلوېښت کلني د ځوانۍ زوړتیا ده او پنځوس کلني د زوړتیا ځواني.
- ناخوښي زموږ د هیلو او زموږ د استعدادونو تر منځ د توپیر څخه عبارت ده.
- هغه څوک چي دوستان لري هیڅکله بې گټي نه وي.
- ځوان د زوړتیا په معنا نه پوهیږي او زوړ هېروي چي ځواني څنگه وه.
- غلط هدف ته د رسېدو له پاره نېک عمل کول بې معنا کار دئ.

پای

محمدهارون خپل شعشعي/لندن

# د سنسکریت او پښتو مشترک ږغونه

له پښتو سره د سنسکریت او ځینو هندو- آریایي ژبو د مشترکو ږغو مقایسه یې شننه

(لومړۍ برخه)

پښتو او سنسکریت دواړي د هندو- اوروپایي په لو او پراخه کورنۍ پوري اړه لري. البته، سنسکریت لرغوني، خو پښتو نسبتاً ځوانه ژبه ده. معاصر ژبپوهان سنسکریت (سنسکریتم، سنسکریته) د هندو- آریایي ژبو مور ګڼي، چي پخوانی تاریخ یې له ویدي عصر یا ویدي سنسکریت ځخه شرو کیږي. سر رالف لیلي ټرنر په خپل شهکار اثر (د هندو- آریایي ژبو مقایسه یي فرهنګ) کښي د هندو- آریایي ژبو په منځنۍ او معاصره دوره کښي دغه ژبي په ګوته کړي دي (البته، دا یې غټي او مهمي ژبي دي. که ځیني کوچنۍ مۆچنۍ ژبي هم ور سره جمع سي، نو یې شمېر تر دې زیاتیږي):

**الف) منځنۍ هندو- آریایي ژبي او ژبني اسناد:**

۱) پالي (Palī).

۲) د آشوکا کتیبې (Aśokan Inscriptions).

۳) د نیّیا اسناد (Nīyā Documents).

۴) پراکریت (Prākrit).

۵) اپبهرنشه (Apabhraṁśa).

**ب) نوي هندو- آریایي ژبي:**

۱) جیپسي (Gypsy)

۲) کافیري یا نورستاني (Kāfrirī/ Nuristānī)

۳) دردیک (Dardic) یا دردو (Dardu)

۴) کشمیري (Kaśmirī)

۶) لهندا (Lahndā)
۷) پنجابي (Panjābī)
۸) لوېديځه پهاړي (West Pahāṛī)
۹) ګړهوالي (Gaṛhwālī)
۱۰) کوَمَوني (Kumaunī)
۱۱) نېپالي (Nepālī)
۱۲) اسامي (Assamese / Asamiya)
۱۳) بنګالي (Bengālī)
۱۴) اوړیا (Oṛiyā)
۱۵) اوَدهي (Awadhī)
۱۶) هندي (Hindī)
۱۷) برجبهاښا / برجبهاشا (Brajbhāṣā)
۱۸) مارواړي (Mārwāṛī/ Mārwādī)
۱۹) ګوجراتي / ګجراتي (Gujarātī)
۲۰) مراټهي (Marāṭhī)
۲۱) کونکڼي (Koṅkaṇī)
۲۲) سینهالي (Senhalese)
۲۳) ملدیوَي (Maldivian) یا دیوېهي (Dhivehi/ divehī)

او داسي نور.[۱]

له بله پلوه، ژبپوهان پښتو د ایراني ژبو په شمال – ختیځه څانګه پوري تړي، چي له خوتني / خُتني، باختري او پامیري ژبو سره نیژدې اړېکي لري (البته، ایتنولوګ؛ د نړۍ ژبي – د نړۍ د ژبو په باره کښي اینټرنیټي خپروَنه – یې د سوهیل – ختیځو ایراني ژبو په ډله کښي شماري).[۲]

د آریایي ژبو د هندي او ایراني څانګو له یو ځای کېدو څخه د هندو – ایراني (The Indo-Iranian) یا هندو – ایرانیک (The Indo-Iranic) یا آرین / آریایي (Aryan languages) ژبو ښاخ جوړېږي. دا ژبي د هندو – اوړوپایي ژبو (The Indo-European languages) د لویي کورنۍ تر ټولو ختیځي ژبي ګڼلي کیږي.[۳]

د هندو – ایراني ژبو دواړه ښاخوَنه په پای کښي و ویدي سنسکریت (Vedic Sanskrit) ته رسیږي، چي په واقعیت کښي د دواړو ښاخو مبدأ او منشأ ده. له بده مرغه زه د شمال – ختیځو ایراني ژبو د ړغنو خصوصیاتو په اړه هیڅ مالومات او اشنایي نه لرم. په دې خاطر یې له پښتو سره پر مشترکو اړخو هم هیڅ خبره نه سم کولای، خو د ځینو هندو – آریایي ژبو د څو ټکو تر لوستلو

وروسته و دې نتیجې ته رسېدلئ یم، چې پښتو د هندو–آریایي ژبو له مور یاني سنسکریت سره ډېر نیژدې او پیاوړي اړیکي لري.

په دې چې د ژبو د پرتالي یا مقایسه یې څېړني په ټولو اړخو لکه صرف، نحو، لغوي جوړښت، لیکدود (رسم الخط) او املاء، ریښه پېژندنې، افعالو، ضمایرو او داسي نورو کښې د سنسکریت او پښتو پرتله یا پرتال خورا اوږده او مشرح موضوع ده، له دې خاطره نو په دې لنډکې لیکنه کښي یوازې د سنسکریت او پښتو د ډېر مهم او اساسي اړخ په باره کښي څو مقدماتي خبري کوو. دا مهم او ټاکوونکی اړخ د دواړو ژبو د ږغنو یا صوتي خصوصیتو ګډ اړخ دئ، چې د دواړو ژبو د اصلي ویوونکو د ګفتاري یا شفاهي ژبي دقیقه ترجماني کیي.

د یوې ژبي تر ټولو مهمه او معتبره برخه هم په حقیقت کښي دغه اصیل او لرغوني ږغن خصوصیات دي. ولې؟ په دې چې د هري ژبي لیکدود او املایي سیستم، لغوي زېرمه، نحوي جوړښت او څینو نور ژبني اړخونه د زمانو له اوښتو سره خپله څېره اړیي؛ مثلاً یو وخت د یوې غالبي ژبي او واکمن فرهنګ د ژور نفوذ په وجه په مغلوبه ژبه او پایمال سوي فرهنګ کښي د مسلطي ژبي او فرهنګ بېشماره ټکي، ترکیبؤنه، اصطلاحات او عبارتؤنه رواج مومي. بل وخت د بلي ژبي او فرهنګ و نفوذ ته لار پرانیستل کیږي، چې له هغه سره هم و محکومه ژبي او ترټلي فرهنګ ته د پردو ټکو، ترکیبو، اصطلاحاتو، عبارتو او فکري نظریو لوی سېلاؤ لار مومي. برعکس، یو وخت بیا د یرغلګرو پردو ژبو او فرهنګي جریانو د شنډولو او مخنیوي په مخسد (مقصد) په یوه ټولنه کښي د ملتپالني یا نشنلیزم څپې را پورته کیږي، چې له هغو سره هم بېله شکه د ژبي په لغوي زېرمه او د ټولني په فرهنګي ارزښتو کښي ستر او ژور بدلؤنونه راځي. دغه راز د ژبي د ودي او پرمختګ په یوه زماني پړاؤ کښي له یو راز تورو او نخښو څخه کار اخیستل کیږي؛ په بل پړاؤ کښې له بل راز تورو او نخښو څخه. تر دې خبرو چې تېر سو، د لیکوالو، شاعرانو او عالمانو د لیکني او بیان سبکونه هم هیڅکله ژبه پر یوه حال نه پرېږدي؛ څکه یو لیکوال او شاعر یو سبک پالي، بل لیکوال او شاعر د بېل سبک او مکتب پیروي کیي. کله کله یو راز جؤمله (جمله) یا د جؤملې یو راز نحوي جوړښت او ګرامري قاعده د دوو بېلو لیکدودو یا بېلو املایي نخښو په وسیله تمثیلیږي؛ مثلاً میں سکول میں پڑھ رہا ہوں.

که د اؤردؤ ژبي مخکنۍ جؤمله په هندي ژبه و ویل سي، د لغوي زېرمي، نحوي جوړښت، ګرامري قاعدو او بالاخره ږغنؤ خصوصیاتو له مخې به هیڅ پَرک (فرق) و نه لري:

मैं स्कूल में पढ़ रहा हूँ।

البته، د اؤردؤ او هندي د دغي جؤملې تر منځ یوازنی تؤپیر په دې کښي دئ، چې د اؤردؤ ژبي جؤمله د عربي، پاړسي او اؤردؤ په یوه مختلط یا ګدوَډ لیکدود کښل سوې ده؛ حال دا چې هندي جؤمله په دېوَناګري لیکدود کښل سوې ده، چې پر سنسکریت سر بېره د خورا ډېرو هندو–آریایي ژبو د لیکدود په توګه کاریږي. اؤردؤ جؤمله عربي، پاړسي، پښتو او څینو نورو ژبو غؤندي له ښي

خوا څخه و کيني خوا ته ليکل کيږي؛ په داسي حال کښي چي هندي جۇمله انګرېزي او نورو اوْروْپايي ژبۆ غوْندي له چپې خوا څخه و راستي خوا ته کښل کيږي. شک نسته چي هندي او اوْردوْ پر ليکدود او املايي نخښو سربېره د جلاوالي ډېر نور ظريف او حساس اړخونه هم لري. د دي خبري د يادوَني مخسد دا دئ، چي د يوې ژبي ليکدود د هغې د تاريخي منشأ، ژبني ځايځايګي او ځينو نورو اصيلو ځانګړتياوو په پېژندنه کښي تاکوْنکی ارزښت نه لري؛ ځکه په تېر مثال کښي مو له ورايه وکتل، چي هندي او اوْردوْ په لغوي زېرمه، نحوي سکښت او ګرامري جوړښت کښي د بشپړي همرنګی پر خلاف، له کاملاً بېلو ليکدودو او املايي نخښو څخه کار اخلي.

يقيناً د يوې ژبي په وينګ او نورو شفاهي خصوصيتو کښي هم د زمانو په تېرېدو سره ځيني اوْښتني يا بدلوْنوْنه پېښيږي، چي وروسته يې د ښه پوهېدو په نيامت ځو مثالونه وړاندي کوْؤ؛ خو دمګړی بايد په دې اړه دا خبره هېڅکله هېره نه سي، چي د ژبي په وينګ او نورو شفاهي خصوصيتو کښي پېښ سوي بدلوْنوْنه (که په دقيقه توګه ثبت او افاده سي) په ډېري اسانی او بشپړ دقت کولای سي د يوې ژبي د تاريخي تکامل اصلي او واقعي تصوير وړاندي کي.

د سنسکريت او پښتو د ږغنوْ خصوصيتو د پرتلې دپاره د سنسکريت هغه ږغوْنه ګورو، چي تر ځو زره کاله تېرېدو وروسته اوس هم په پښتو کښي ژوندي او مستعمل دي؛ او دا ژور پيوند له ورايه ښيي چي پښتو تر زياترو هندو-آريايي ژبوْ لا هم و سنسکريت ته نيژدې ده. د سنسکريت او پښتو ږغو د پرتلي څېړني دپاره لومړی د سنسکريت ښورن يا واول ږغوْنه (vowels) او ورپسې هغه ساکن يا ناښورن ږغوْنه (consonants) تر نظر تېروْؤ، چي د زياترو هندو-آريايي ژبوْ د ضايع کېدو يا کمرنګی پر خلاف، په پښتو کښي تر اوسه په خپله اصلي او لرغوْنې بڼه خوندي دي.

## لومړی: د سنسکريت او پښتو ښورن ږغوْنه:

په سنسکريت کښي لس عام او يو خاص واول کاريږي، چي په سپلابي يا خپلواکه بڼه (syllabic form) او سپلابمنځي يا ترلې بڼه (intra-syllabic form) کښي بېل بېل شکلونه لري:

| syllabic form<br>سپلابي يا يوازي بڼه | intra-syllabic form<br>سپلابمنځي يا ترلې بڼه | Phonetic/ Romanised form<br>فونيټکه/رومي بڼه |
|---|---|---|
| अ | . | a |
| आ | . | ā |
| इ | ि | i |
| ई | ी | ī |
| उ | ु | u |
| ऊ | ू | ū |
| ए | े | e |

| | | |
|---|---|---|
| ai | ै | ऐ |
| o | ो | ओ |
| Au | ौ | औ |

په دې لیکنه کښې د سنسکریت او هندي ټکوّ د تلفظ لاربښود:

| مثالۇنه | پښتو توری/ نخښه | فونیټیکه نخښه | مثالۇنه | پښتو توری/ نخښه | فونیټیکه نخښه |
|---|---|---|---|---|---|
| هۇن، هان، لوګون، انګنه، کۇنجيّ، چندنه amṁgaṇa, kuṃ-jī, caṁ-da-ṇa | چندره بیندۇ (کله کله د نۇن، کله کله د غۇنې/ غنې په توګه؛ په ځینو قامۇسو کښې د (ṅ) یا (ṃ) پر ځای) | ṁ | آرسيّ، آسرا | آ | ā |
| ناټک، نالیّ | ن | n | ابیّر، اپهیّم | زوَر/ ا | a |
| میان، جهان | انۇسواره د غۇنې/ غُنې یو ډوَل؛ په ځینو حالاتو کښې بې ټکي نۇن (ں) | ṅ | اۇسان، لوَه/لوٗ | مجهۇل وزمه واو (ۇ) | au |
| آنچل، ګنجهه، راجنيّ | د غۇنې/ غُنې یو ډوَل | ñ | سرِی، رِی | ترمه یا نارینه یاء (ی) (په پښتو ټکوّ کښې) | ay |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| əy | ښځینه یا لکۍ داره یاء (ۍ) (په پښتو ټکۍ کښي) | نجلۍ، ګلالۍ | ṇ | ڼ | برهمڼ، بڼیج |
| b | ب | بهوّس، بیاپار | o | مجهوّل یا اوږد واو (و) | ګوبيّ، بوريّ، سوچ |
| bh | بهـ | بهار، بهَټ | p | پ | پَنکها، پَیسا |
| c | چ | چاوَل، چپړاسيّ | ph | پهـ | پهاټک، پهاړيّ |
| ch | چهـ | چهَت، چهکړا | r | ر | رس، رسّيّ |
| d | د | دوّپټا، دهوبيّ | ṛ | ړ | اَړ، اناړيّ |
| dh | دهـ | دودهـ، دهرمسال | ṛh | ړهـ | پیړهيّ / پیړيّ، چړهاییّ |
| ḍ | ډ | ډَبّا، ډَر | ṛ̣ | ري یوازي په سنسکریت ټکۍ کښي؛ په ځینو قاموسو کښي د (ṝ) یا (ṛ) په بڼه | ریښي / ریشي، ریګوېده / ریګوېد |
| ḍh | ډهـ | ډهول، ډهوليّ | s | س | باڼس / بانس، سړک / سرک |
| e | مجهوّله یا اوږده یاء (ې) | ګرهلا، لهڼ دهڼ | ṣ | ښ | ښَنډ / شَنډ، وَرښَت |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| آشوَه، آشلوک | ش | ṡ | ګېند، ګوبيٚ | ګ | g |
| تار، تال | ت | t | ګهاس، ګهوړا | ګهـ | gh |
| تهوُک، تهان | تهـ | th | داغ، تغاريٚ | غ (په پښتو او هندي ټکو کښي) | ğ |
| ټانکا، ټَبَر | ټ | ṭ | هټّه/هټّ، هَډّا | هـ/هه | h |
| ټهک، ټهنډا | ټهـ | ṭh | واټهـ، باهؤهـ | هـ په سنسکریت ټکو کښي | ḥ |
| سؤر/سُر، سؤدها/سُدها | سپک یا پوست معرؤّف واو (ؤ) | u | پَیکړها/ پَیکړا، چَیٖن | سپکه یا نرمه معرؤّفه یاء (ی) | i |
| کؤټنا، کهجؤّر | مُشدد یا خجمن معرؤف واو (ؤّ) | ū | پیّل، کړاهيٚ | مشدده یا درنه یاء (يٚ) | ī |
| وَن، ویدا، ویساک | ښورَن وَزمه یا شبه واول واو (ؤّ/و) | v/ w | جاټ، جاٱلي | ج | j |
| یوګه/ یوګ/ جوګ، یؤوَن | ښورَن وَزمه یا شبه واول یاء (یَه) | y | جهټکا، جهیريٚ | جهـ | jh |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| موږهَ، لوټهَ | د فشار یا خج نخښه ( په پښتو ټکو کښې ) | ّ | کنجوّس، کوټوال | ک | k |
| sa-tī, bāṛ, ḍā-kū | د فشار یا خج نخښه په (هـ –آ) ټکو کښې د ښور نوږ رغو پر سر | – | کهېل، کهټمل | کهـ | kh |
| nā-la, bhāg-nā | د کلیمو د سپلابو تر منځ بېلوّنکې نخښه | ' | کړ، لوټا | ل | l |
| | | | منډي/ منډيّ، میرګيِ | م | m |

د سنسکریت خاص واول:

| Phonetic/ Romanised form فونیټکه/رومي بڼه | intra-syllabic form سپلابمنځي یا تړلې بڼه | syllabic form سپلابي یا یوازي بڼه |
|---|---|---|
| ṛ/ ṝ/ ṛ | ृ | ऋ |

د سنسکریت خاص واول، چې یوازي د ځینو سنسکریت ټکو په ترکیب کښې راځي، په دېوَناګري لیکدود کښې د واحد فونیم ارزښت لري؛ خو په هندي کښې د « ri » په څېر ویل کېږي. دلته یې د ښې اشنایۍ دپاره څو مثالونه وړاندي کوّو:

| پښتو مانا | تلفظ | سنسکریت/هندي ټَکی |
|---|---|---|
| ټاپی، موسم، فصل، وخت. | ri'tu | ऋतु |
| مړ، مړ سوی. | mrit | मृत |
| هراړخیز، پراخ، مفصل، وسیع. | vis'trit | विस्तृत |

د سنسکریت «अ» او «आ» واولوّنه، چې د دېوناګري په فونیټکه الفبې کښې په ترتیب سره د«a» او «ā» په نخښو افاده کېږي، په پښتو کښې هم په کټ مټ دغه بڼه دود دي. دلته یې د پرتلې دپاره په سنسکریت – هندي او پښتو کښې یو و نیم مثالوّنه وړاندي کوّو:

۱) अ :

| پښتو مانا | تلفظ | سنسکریت/ هندي ټکی |
|---|---|---|
| ښه، عالي، روغ، روغ رمټ. | ac'chā | अच्छा |
| ۱) پای، اخیر، نتیجه. ۲) چپه کېدل، نسکورېدل. ۳) څنده، ژی. ۴) مړینه. | aṅt/ aṃta/ aṅta/ aṃt | अंत |
| تور، اتهام، الزام، پړتیا. | ak'ṣa'ma/ ak'ṣam | अक्षम |

دغه ږغ په پښتو کښې کله کله د مقصوره یا بې مده الف او کله کله هم د زوَر په وسیله تمثیلیږي. اتل، انا، امانت، ازار، اشنا، اشر، سلام، سهار او زرګونه نور په پښتو کښې د دې ږغ ځیني مثالونه دي.

۲) आ :

| پښتو مانا | تلفظ | سنسکریت/ هندي ټکی |
|---|---|---|
| برید، ګوزار، حمله، تېری، یرغل. | āk'ra'ma'ṇa/ āk'ra'maṇ | आक्रमण |
| ۱) اوستاد/ اُستاد، پروفیسر. ۲) مشر، رییس. | ā'cār'ya | आचार्य |
| تور، اتهام، الزام، پړوالی، شکایت. | ā'rō'pa/ ā'rōp | आरोप |

دا ږغ په پښتو کښې زیاتره د ممدوده (مدوالا یا اوږده) الف په وسیله تمثیلیږي؛ لکه آس، آش، آه، آخیستل، آروېدل او داسي نور. آسمان، آفتاب، آګاه، آشنا، آرام، آسان، آسوده، آشفته او داسي نور یې ځیني پارسي مثالونه دي. البته، په ډېرو پښتو ټکو لکه لالا، ماما، کاکا، بابا، انا، واوا، لار، لانبی، واک، خواک، مار، جار/ ځار، وار او داسي نورو یا ډېرو پارسي ټکو؛ لکه دلاویز، دلارام، دارایی، داراب، راکد، ګویا، شیدا، پویا، جویا او داسي نورو کښې هم اصلاً ممدوده الف کار سوئ دئ، که څه هم د پښتو او پارسي په مروجه املاء کښې ظاهراً په مقصوره (بې مَده یا لنډ) الف کښل کیږي؛ ځکه په دغه راز ټکو کښې د زوَر یا مقصوره الف په پرتله، خوله دوه چنده خلاصیږي. که وغواړو، چي دغسي ټکي د پښتو یا دري په فونیټکه الفبې وکاږو، د الف ږغ د افادې دپاره یې باید ارومرو د ممدوده الف له معادلي نخښې یاني (ā) څخه کار واخلو. په دې ترتیب، د هغو الف لرونکو پښتو ټکو په وینګ کښې، چي خوله د زوَر دوه چنده خلاصیږي، په واقعیت کښې دغه ږغ نغښتی دئ، چي په پښتو، پارسي، اوردو او ځیني نورو ژبو کښې د مدوالا یا ممدوده الف (آ) په کومک افاده کیږي.

د سنسکریت په تېرو لسو عامو واولو کښې د (و) څلور ډوَلوُنه راځي، چې د واول وزمه یا شبه واول (व = va) په شمول ټولټال پینځه ببل (و) کیږي. د سنسکریت دا پینځه ببل (و) په پښتو کښې هم کټ مټ یو شی دي. دلته یې اول په ځینو سنسکریت او هندي ټکو کښې څو مثالوُنه ګورو. وروسته یې د پر بمانه مستعملو مثالو په وړاندي کولو سره په پښتو کښې هم ځیني نمونې ښیو:

۱) उ:

د دېوناګري په فونیټیکه الفبې کښې د دغه (و) سېلابیکه بڼه د «u» په نخښه تمثیلیږي؛ لکه په دغو ټکوُ کښې:

| سنسکریت/هندي ټکی | تلفظ | پښتو مانا |
|---|---|---|
| उकसाना | u'ka'sā'nā | لمسول، پاروَل. |
| उपहार | u'pa'hā'ra/ u'pahār | سوغات، تُحفه، بېلک، ډالی. |
| उबालना | u'bā'la'nā | ایشول، خوَټوَل. |

په سنسکریت کښي د (و) دغه ډوَل د کلیمې په منځ یا سېلابمنځي (Intra-syllabic) حالت کښي د هغي کښتنۍ (subscript) وړغندي وزمه نخښي په مرسته افاده کیږي، چې خوَله یې وکیږ یا چپه لوري ته خلاصیږي (ु)؛ لکه په دغو ټکوُ کښي:

| سنسکریت/هندي ټکی | تلفظ | پښتو مانا |
|---|---|---|
| कुँवारा /कुँआरा | kum̐'ā'rā/ kum̐'vā'rā | څَرَه، جَرَه، غیرمتأهل. |
| दुर्लभ | dur'la'bha/ dur'labh | نایاب، نادِر، نه میندونی/ نه مؤندؤنی. |
| दुर्घटना | Dur'gha'ṭa'nā | ناوړه پېښه، حادثه، سانحه. |

د سنسکریت دغه (و) د پښتو له هغه نرم یا خفیف (و) سره یو شی دئ، چي په ځینو پښتو، پاړسي، اوُردوُ او ځینو نورو ژبوُ کښي معمولاً د عربي پېښ په وسیله افاده کیږي؛ لکه ګوُدر، کوُنجی، غوُنډی، ګوُنا، ګوُځی، کوُزه، کوُځه، کوُچنی، ګوُته، خوُشال، خوُښ او داسي نور. په پاړسي، اوُردوُ او داسي نورو ژبوُ کښي ګوُدر، غوُنډی، ګوُنا او داسي د ګدار، غُندی، ګناه او داسي نورو په ډوَل کاریږي.

زوَر، زېر، پېښ او داسي نور د عربي اِعراب نخښي دي، په پښتو، پاړسي او داسي نورو آریایي ژبوُ کښي ځای نه لري. دغه راز آریایي ژبي باید دېوناګري لیکدود غوُندي د پېښ پر ځای د (و) له یوې جلا او خاصي نخښي څخه کار واخلي. پښتو متنپوهان پوهېږي، چي زموږ پلرو او نېکو پخوا پر عربي او پاړسي ټکوُ سربېره حتا خپل سوُچه پښتو ټکي لکه «ګوته»، «غوُندي»، «غوُنډ» او داسي

نور هم د «گته»، «غُند» او «غُندِ» په ښه کښل. له ښکه مرغه اوس ښایسته ډېري کلیمې د عربي او پاړسي لیکدود د کورکورانه پیښنه گری. پر خای د پښتو په سهي او علمي املا کښل کیږي. دا لار باید نوره هم پسي عامه او پراخه سي. په بله وینا، هر څه باید کرار کرار په داسي ښه وکښل سي، چي زموږ د ژبي له ږغنو اصولو او موازینو سره سمون او برابري ولري. د آریایي ژبو خاص اوازونه هیڅکله د عربي اِعراب په کومک نه سي افاده کېدلای؛ ځکه د دغو ژبو ځیني اوازونه په عربي او نورو سامي ژبو کښي گرسره نسته.

۲) ऊ:

د (و) دا ږغ په یوازي یا سېلابي ښه د دېوناگري په فونیټیکه الفبې کښي د « ū » په نخښه افاده کیږي؛ لکه پـه دغو سنسکریت – هندي ټکو کښي:

| سنسکریت/هندي ټکی | تلفظ | پښتو ترجمه |
|---|---|---|
| ऊँचा | ūmঁcā/ ūṅ'cā | لوړ، جگ، رفیع، عالي، لوی، ارزښتناک. |
| ऊंट/ ऊँट | ūṇ'ṭa/ ūṇṭ | اوښ. |
| ऊपर | ū'pa'ra/ ū'par | پورته، پاس، لوړ، عالي. |

د (و) دغه ښه د کلیمې په منځ یا سېلابمنځي (Intra-syllabic) حالت کښي د هغي کښتنۍ (subscript) وړغندي وزمه نخښي په وسیله افاده کیږي، چي خوله یې و ښی یا راسته لوري ته خلاصیږي(ू)؛ لکه په دغو ټکو کښي:

| سنسکریت/هندي ټکی | تلفظ | پښتو مانا |
|---|---|---|
| दूध | dū'dha/ dūdh | شیدې/شودې. |
| बुढा/ बूढा | bū'ḍhā/ bū'ṛhā | جادوگر، ساحر، غیبگو، کاهن. |
| भूकम्प | bhū'kam'pa/ bhū'kamp | زلزله. |

د سنسکریت او ځینو نورو هندو–آریایي ژبو دا ږغ د پښتو له هغه مُشدد معروف یا څرگند (و) سره معادل دئ، چي په ویلو کښې له ورایه خج یا فشار (accent/ stress) لیدل کیږي؛ لکه د پښتو په دغو کلیمو کښي، چي زې (زه یې) د همزه لرونکي مُشدد (وّ) په کومک افاده کوم:

– لوستوّنکی، وهوّنکی، ښووّنکی، کتوّنکی ...

– قصوّر، حضوّر، ضروّر، محشوّر، مشهوّر ...

– سُکوّن، جُنوّن، فُنوّن، آزموّن/ ازموّن، افسوّن، جیحوّن، هاموّن، قانوّن ...

– روّس، جوّس، ناموّس، پانوّس، منحوّس ...

– موجوّد، هنوّد، یهوّد، حسوّد، وروّد...

ځيني پښتانه ليکوال دا ډَوَل مُشدد معرؤف (و) په ځينو (نه گردو) ټکؤ کښې د دوو (و) په کارولو سره تمثيليي؛ حال دا چي ځيني ليکوال دوه (و) په ماضي زمانه کښې د فاعل له مفردي صيغې او ځيني نور يې بيا د فاعل له جمعي صيغې سره د کومکي فعل په توگه کاريي.

۳) ओ:

د دېوناگري ليکدود په فونيټيکه الفبې کښې د (و) دا ډَوَل ږغ زياتره د «o» کله کله د «ō» په نخښه ښووَل سوئ او ښووَل کيږي؛ لکه په دغو ټکؤ کښې:

| پښتو ترجمه | تلفظ | سنسکريت/هندي ټکی |
|---|---|---|
| لوري، خوا، طَرَف. | o'ra/ or | ओर |
| جادؤگر، ساحر، غيبگو، کاهن. | o'jhā | ओझा |
| ۱) تکړه، قوي، ځواکمن. ۲) چُست، چالاکه. | o'jas'vī/ o'jas'wī | ओजस्वी |
| د امريکا دولتمشر، اوباما. | O'bā'mā | ओबामा |

دغه (و) د کليمې په منځ ياسپلابمنځي (Intra-syllabic) حالت کښې پر يوه عمودي خط باندي د يوه کوچني پورتني (superscript) ايرَب خطگوټي په وسيله تمثيليږي (ो)؛ لکه په دغو ټکؤ کښې:

| پښتو ترجمه | تلفظ | سنسکريت/هندي ټکی |
|---|---|---|
| خلگ، وگړي، اؤلس. | Log | लोग |
| کرل، شين کول. | bo'nā | बोना |
| دَرَوَل، بندښت، مخنيوی، کنټرول، موقتي چارَه. | ro'ka'thā'ma/ ro'ka'thām | रोकथाम |

د هندو-آريايي ژبؤ دا (و) په پښتو کښې د مجهول يا اوږده (و) په نامه ياديږي؛ خو په پښتو ليکدود کښې نه د افادې او تمثيل ځه خاصه نخښه سته، او نه يې ببله ځو گوتو په شمار ليکوالو ځخه چا په سهي او دقيق استعمال سر گرزولئ دئ. تقريباً هر چيري د (و) نورو ډَوُلو غؤندي د ساده (و) په توري افاده کيږي؛ لکه په دغو ټکؤ کښې: بور، تور، سکور، نور، کور، گور، مور، خور، ورور، پېغور، ځلور، اور، شور، ښور، زور او داسي نور.

۴) औ:

د سنسکريت او نورو هندو-آريايي ژبؤ د( و ) دا ديفتنگ ږغ د دېوناگري ليکدود په رومي ترانسلېټرېشن او فونيټيکه الفبې کښې معمولاً د( au ) په تورو افاده کيږي. خو د هندي په بېلابېلو لهجو کښې د يوه ثابت واول يا مونوفتنگ ( monophthong ) او دوو بدلېدؤنکؤ واول ږغو يا ديفتنگ ( diphthong ) په دواړو شکلو باب دئ.

د (و) دا دوه ږغنه بڼه د کليمو په منځ يا سپلا بمنځي حالت کښي يوازي پر يوه عمودي خط باندي د دوو پورتنيو (superscript) کرښو يا ايرَب خطو په نخښه ښوول کيږي (ौ)؛ لکه په دغو ټکؤ کښي:

| سنسکريت/هندي ټکی | تلفظ | پښتو ترجمه |
|---|---|---|
| औरत | au'ra'ta/ au'rat | ښځه، مېرمن. |
| और | au'ra/ aur | اَؤ، نور. |
| औसान | au'sān | عقل، هوښ، هوښياري، پر ځان تسلط، متانت، زړورتيا، ارامښت. |

د (و) دا دوه ږغنه يا ديفتنګل بڼه (diphthongal type) د کليمو په منځ يا سپلا بمنځي حالت کښي يوازي پر يوه عمودي خط باندي د دوو پورتنيو (superscript) کرښو يا ايرَب خطو په نخښه ښووَل کيږي (ौ)؛ لکه په دغو ټکؤ کښي:

| سنسکريت/هندي ټکی | تلفظ | پښتو ترجمه |
|---|---|---|
| दौड़ना | dau'ṛa'nā | ځغاسته، منډه. |
| दौड़ | Dauṛ | سيالي، مسابقه. |
| दौहित्र | dau'hitr | د لؤر زوی، د لؤر د خوا لمسی. |

د (و) دا ډوَل په واقعيت کښي د پاسته يا سپک معرؤف واو (u) او مجهول واو (o) تر منځ ږغ لري. په بله وينا دا (و) د پاسته يا سپک معرؤف واو (u) او مجهول واو(o) له امتزاج ځخه پيدا سوئ دئ. کېدای سي د مجهول ډؤله يا شبه مجهول (و) په نامه مسما؛ او د يوې جلا نخښي په وسيله تمثيل سي.

د سنسکريت او نورو هندو- آريايي ژبؤ د دغسي (و) مثالونه د پښتو په دغه راز ټکؤ کښي گورو: اؤ (نور)، اؤسان، دؤران، دؤرهَ. دؤلت، اؤسط، اؤلاد، اؤتاد، اؤراد، اؤزار، اؤغان(د افغان مفغنه بڼه)، اؤگار(په جنوب – لوېديځه لهجه کښي د افگار مفغنه بڼه)، اَؤکوب. اَؤضاع، اَؤقات، لَؤ، نَؤ (لندبل، رطوبت)، رَؤ، خَؤ (خَؤگري)، رَؤدهَ، کَتَؤ، کَنډؤ. گسؤ (جنګ، مقابله)، پيرؤ، پېشرؤ، پَلَؤ، چَلَؤ، جيلؤ/ جِلؤ، مؤقع، مؤضع، تؤجيه، تؤزيع، تؤليد. تؤصيف، تؤظيف، تؤفيق، تؤقيف او داسي نور.

۵) व:

د (و) دغه ډوَل ږغ «يَه»، «رَه» او «لَه» غږندي په سنسکريت او نورو هندو- آريايي ژبؤ کښي د شبه واول (semivowel) په ډله کښي شمېرل کيږي، چي د سنسکريت او هندي د ځينو مؤلفانو

په اثارو کښې په (v)، په ځينو کښې په (w) او په ځينو نورو کښې په (v) او (w) دواړو تمثيل سوئ دئ؛ لکه په دغو کليمو کښې:

| سنسکريت/هندي ټکی | تلفظ | پښتو ترجمه |
| --- | --- | --- |
| वस्तु | vas'tu/ was'tu | شی، څيز، توکی، جنس. |
| वर्ष | var'ṣa/ var'śa/ warṢ/ warś | کال، يوکلنه مؤده، دولس مياشتي. |
| वरदान | va'ra'dā'na/ va'ra'dān/ wa'ra'dā'na/ wa'ra'dān | دؤعا / دعا، حاجت غوښتنه، خواست، راز و نياز. |

د هندي ژبې اصلي ويؤنکي د (و) دا ږغ په ځينو ټکؤ کښې د (v) او په ځينو نورو کښې د (w) په بڼه وايي. مانا دا چي په دې کښې د (v) او (w) فونيم دواړي مغيري بڼې يا الوفونونه (allophones) ژوندي او مستعمل دي.

وَطن، وَزير، والي، وَکيل، وَبا، وَفا، وَريد، وَتل، وَيل، وربشل، وَژل، وَلاړ، وَدان، وَر، وَزر، وَخت، وَضاحت، وار، وَاده، والِد، والِده، وَرثه، وَسيله، واسطه، وراشه، وراسته، وَرؤکی، وَفات، وير، ويده (بيده)، وينځل (مينځل)، ويشتل، وِجدان او داسې نور ټول په پښتو کښې د دغه واول وزمه (و) ځيني نمونې او مثالونه دي.

## په سنسکريت او پښتو کښې د (ی) ږغؤنه:

په سنسکريت کښې د (ی) پينځه بېل ږغؤنه کارېږي، چي څلور يې د ښور نؤ يا واولو او پاته يو يې د واول وزمه يا شبه واول په ډله کښې شمارل کيږي. په ښور نؤ (ی) ګانو کښې دغه څلور ډؤلؤنه راځي، چي د کليمو په سر او منځ (سېلابي او سېلابمنځي بڼه) کښې بېلابېل شکلونه لري:

| syllabic form<br>سېلابي يا يوازي بڼه | intra-syllabic form<br>ګډه يا سېلابمنځي بڼه | phonetic form<br>فونيتيکه/رومي بڼه |
| --- | --- | --- |
| इ | ि | i |
| ई | ी | ī |
| ए | े | e |
| ऐ | ै | ai |

(य) په سنسکريت او ځينو نورو هندو-آريايي ژبو کښې د ښورن وزمه ږغو په ډله کښې شمارل کيږي؛ او د (y) په رومي توري تمثيليږي. اوس په ترتيب سره د دغو بېلو پينځو (ی) ګانو هر ږغ له څو مثالو سره په جلا جلا ډؤل ګورو:

۱) इ:

الف) سپلابي یا خپلواکه بڼه (syllabic form):

| سنسکریت/ هندي ټکی | تلفظ | پښتو مانا |
|---|---|---|
| इच्छा | ic'chā | هیله، اؤمید/اُمید، آرزو، غوښتنه، مرضي، هوډ، اراده |
| इतवार | i'ta'vār | یکشنبه، په هندي کښي د «روي وار» په نامه هم یادیږي |
| इलायची | i'lā'ya'cī | ایلاچي/ الاچي/ لاچي |

ب) تړلې یا سپلا بمنځي بڼه (intra-syllabic form):

| سنسکریت/هندي ټکی | تلفظ | پښتو مانا |
|---|---|---|
| नियंत्रण | ni'yan'tra'ṇa/ ni'yan'traṇ | کنټرول، نظارت، څارنه |
| निजी | Ni'jī | خصوصي، شخصي، خپل، د خان |
| बिना | Bi'nā | بېله، غیر له، ماسوا |

د سنسکریت اُو نورو (هـ –آ) ژبۇ ودې ډَوُل (ی) ته په پښتو کښي د نرمي یا سپکي (ی) نۇم ور کولای سو. د سنسکریت او پښتو په فونیټکي الفبې کښي د رومي آی (i) په توري افاده کیږي. د (ی) دغسي ږغ په پښتو لیکدود کښي کله کله پاړسي غوندي د عربي زېر ( ـــِ ) او کله کله هم د سپلابمنځي یاء (یـ) په توري افاده کیږي؛ خو سمه او علمي لار یې دا ده، چي په پښتو کښي هم د دېوناګري لیکدود په شان د یوې خاصي او بېلي نخښي په کومک و ښوول سي؛ ځکه پښتو او پاړسي هم سنسکریت او هندي غوندي، آریایي ژبي دي. په دې خاطر نو باید د خپلو اصیلو هجاوو و افادې ته خپل بېل بېل توري او سیمبولونه ولري. پښتو، پاړسي او داسي نورو ژبو ته دا نه ښایي، چي د خپل اصل او ذات پر خلاف د بلې ژبي له داسي نخښو څخه تل تر تله استفاده وکي، چي د دغو ژبۇ د ږغنۇ خصوصیتو د افادې اُو تمثیل وړتیا نه لري. کتاب، کیسه، کنایه، شیطان، شیدې، سږی، منګی او داسي نور په پښتو او پاړسي کښي د دې (ی) بولګې او مثالونه دي. تاسي کتاب، کنایه او داسي نور ټکي د یوه کوچني یا داسي شخص و مخ ته کښېږدئ، چي له پښتو سره پخوانی اشنایي و نه لري؛ او بیا وګورئ چي هغی، دا ټکي څنګه لولي؟ بېوزلو لوستۆنکۇ ته بې اِعرابو څنګه مالومه سي، چي دا عربي ټکي د (کَ) یا (کُ) پر ځای د (ک) په زېر ویل کیږي؟ موږ عربي «نعره»، «لعب»، «صلح»، «صلاح»، «شوری»، «دعوی»، «لیلی»، «معنی»، «نقل»، «قیصه» او سۆنه نور په «ناره»، «لوبه»، «سوله»، «سلا»، «شورا»، «داوه/دعوه»، «مانا/معنا»، «نکل»، «کیسه» او داسي نورو واړول؛ او په دې اوښتۆن سره پښتو ژبي او د هغې و ټولو ویۆنکۇ (لوستو او نالوستو) ته لوی خیر و رسېدئ. لکه څنګه چي په دې ادلۆن بدلۆن سره د ژبي و ټولو ویۆنکۇ او لۆستۆنکۇ ته لو اسانتیا پېښه سوه، په دې کار کښي هم ناوړتیا او ناسموالی، نه بلکي سادګي او

اساني ليدل کيږي، چي تر دې وروسته عربي «کتاب»، «کنايه»، «کلمه» او داسي نور له خپلو صوتي او هجايي ځانګړتياوو سره سم د «کيتاب»، «کينايه»، «کليمه» او داسي نورو په شکل واړوؤ؟ په دې کار سره ښېله شکه له يوې خواژبه ساده او اسانه کيږي، چي هغه بيا په خپل وار سره د ژبي له اسانه زده کولو او پراخولو کښي سره لوی کؤمک کيي؛ او بلي خوا د ژبي د ويؤنکؤ اصلي او لرغؤني تلفظؤنه په سمه او دقيقه ښه خوندي کيږي. البته، د خايي خلګو له دود او دستور سره د خپلو او پردو ټکؤ برابري او سمؤن، د ژبي د يوه منلي اصل په توګه، د نړۍ په ټولو ژبؤ کښي جاري او ساري دئ. دا ارزښتناکه خبره هم بايد له ياده و نباسو، چي د ژبي ليکدود يوازې د نن او سبا اړتيا نه ده. د زمانو په تېرېدو سره به زمونږ نوي نوي نسلؤنه راځي؛ او په دې ليکدود به ليکني کيي. له دې خاطره يې بايد اوس لا کمزورۍ او نيمګړتياوي بشپړي سي.

۲) ईं:

د سنسکريت او ځينو نورو هندو-آريايي ژبؤ دا ږغ په فونيټکه الفبې کښي د خجن يا مُشدد آی (آ) په نخښنه افاده کيږي. په سېلابي او سېلابمنځي حالت کښي ښېل ښېل شکلونه اخلي:

الف) سېلابي يا يوازي ښه (syllabic form):

| پښتو مانا | تلفظ | سنسکريت/هندي ټکی |
| --- | --- | --- |
| ۱) خښته، الماس. ۲) کچره/کخشره. | a/ īṅṭ  ī̱ṃṭ | ईंट |
| خدای، پروردګار، رب، خالق. | īś'va'ṛa/ īś'var | ईश्वर |
| خدايي، الهي، ملکوتي. | īś'va'rī'ya | ईश्वरीय |

ب) سېلابمنځي يا ترلې ښه (intra-syllabic form):

| پښتو مانا | تلفظ | سنسکريت/هندي ټکی |
| --- | --- | --- |
| رسۍ، پړی، مزی، واښکی. | ras'sī | रस्सी |
| ډولۍ، جوپان، کجاوه . | ḍō'lī | डोली |
| بېړۍ، زَؤلنې . | bē'ṛī | बेड़ी |

د سنسکريت او نورو هندو-آريايي ژبؤ دې ډَوَل (ياء) ته په پښتو کښي د معرؤفي يا ځرګندي (ي) نؤم ورکول سوئ دئ. سېلابي ښه يې په پښتو ليکدود کښي تر (ی) لاندي د دوو ځنګ پر ځنګ ټکؤ په ايښوولؤ او سېلابمنځي ښه يې د( ـِـ ) په نخښنه تمثيليږي. د سنسکريت او پښتو په فونيټکي الفبې کښي د دې ( ياء) د افادې دپاره د خجن يا مشدد رومي آی نخښنه کاريږي. البته، په دې کوچني تؤپير، چي د سنسکريت او نورو هندو-آريايي ژبؤ په فونيټکؤ نخښنو کښي خج د(i) پر سر د کوچني اُفقي خط (آ)، خو د پښتو په فونيټکؤ نخښنو کښي د(i) پر سر د کوچني ايرَب خطګي په وسيله ښوؤل کيږي (í).

په دې چي سپکه يا نرمه (ياء) هم په واقعيت کښي يو ډَوَل معروفه يا ځرګنده (ياء) ده، ځکه نو سمه او بهتره دا ده، چي دا ډَوَل (ياء) د سختي يا درنې (ياء) په نامه و بلل سي؛ ځکه په دې ډَوَل

معروفه ( یاء ) کښې له ورایه د ږغ درۀندوالی یا سختوالی ګورو؛ مثلاً سړي، منګي، سیاسي، روحي، عرفاني او داسې نور. البته، په استعمال، استفاده، اسلام، انتقام، التزام، انتظام، الهام، اجازه، اشاره، افاده، ارتباط، انتظار، افتخار، انتقال، ایمان، انسان، عرفان، عمران، او داسې نورو کښې هم دغه راز سخته یا درنه (یاء) کار سوې ده؛ خو موږ یې د عربي په پیروۍ تل په ښېله (یاء) کاږو. د نرمې او درنې (یاء) ږغونه په پاړسي کښې هم ژوندي دي؛ خو دی نه یوازې د دې دوو (یاء) ګانو، بلکې د مجهولي یا اوږدې (ې) دپاره هم یوازې یوه (ی) کاریي. مانا دا چې کوړت، غوړي، شیدې او مستې ګرده په یوه نرخ پلوري (؟!)؛ مثلاً سي. آی. اې.(CIA) چې په واقعیت کښې درې ښېلې (ی) ګانې (سخته، نرمه او مجهوله) پکښې کار سوي دي، ګرده د (سی. آی. ای.) په شکل کاږي؛ او په دې توګه د خپلې ژبې اصیل او لرغوني هجایي خصوصیتونه تر خاورو لاندې کیي.

ژبپوهان پښتو او پاړسي دواړې د آریایي ژبو د ایراني ښاخ د شمال – شرقي څانګې په نوو ژبو کښې شمېري، چې په لرغوني پړاو کښې له زړې پاړسي، اوېستا (نوې او زړې) او بالاخره ویدي سنسکریت سره ایتیمولوژیک تړاو لري. د دې نظریې په رڼا کښې نو دا عجبه او مسخره خبره ده، چې پښتو او پاړسي آریایي ژبې ولو، خو د ږغو د افادې دپاره یې د سامي (عربي) ژبې له اِعراب څخه کار اخلو (هغه هم په ناسمه او نیمګړې بڼه). ژبپوهانو ته دا خبره هم په تمامه مانا روښانه ده، چې د عربي ژبې اِعراب پر پردیتابه سربېره، د آریایي ژبو د ږغنو خصوصیتو د تمثیل او افادې وړتیا هم نه لري.

په پاړسي کښې د ښېلابېلو (یاء) ګانو پر ځای د یوې نخښې کارۇلو د دې ژبې و تاریخي سوابقو ته لوی زیان رسولئ دئ. دري، چې په لغوي زېرمه او ډېرو ږغنو خصوصیتو کښې تر ایرانۍ پاړسۍ و لرغونو هندو – آریایي ژبو ته نیژدې ده، باید د خپلو اصیلو فرهنګي او ژبنیو میراثو د خوندي کولو دپاره د ایرانیانو پر پله پل کښېنږدي. نور بیا ...

***

ټولوونکی: حاجي محمد رزمي

## ګل خبري

- سمندر د بې غیرته سړي څخه کرکه کوي.
- سولې ته لاره نسته بلکې سوله پخپله لاره ده.
- د خوشحاله واده راز به تل پټ پاته سي.
- ځینې سیاسي ویناوې د نه دفاع کېدونکو کارونو د دفاع هڅه ده.
- زه د هغو محکومینو څخه کرکه کوم چې د خپلو جلادانو ستاینه کوي.
- هغه کورنۍ چې په ګډه عبادت سره کوي په ګډه ژوند سره کوي.
- هیڅوک خپل ځان په خوب کې اتیا کلن نه ویني.
- هغه دښمن ته متوجه او سه چې ستا د ګوزار جواب نه درکوي، هغه نه تا بخښي او نه تا پرېږدي چې ته خپل ځان وپېژنې.

***



لیکوال : ډاکټر نثار احمد صمد/کاناډا

# د افغاني هندوانو تاریخچانه

(دوهمه برخه)

**دوهم. په نونسمه پېړۍ کې:**

مور وویل چې د احمدشاه بابا او تېمورشاه په زمانه کې د افغاني هندوانو (او سیکانو) د ژوند حالات او شرایط ډېر سم ول. هغوی په ازادۍ او آرامۍ سره خپل کاروبار کاوه. د دراني واکمنۍ پر مهال هندوانو د مالي پانګه اچوني او حوالو څخه علاوه د چارواکو او مخورو خزانه داري هم کوله، یعني مسلمانانو به خپلي پیسې او ګران بیه شیان د ساتلو له پاره هندوانو ته ورکول. دا لا څه، عادي کسانو به هم خپلي پیسې هندوانو ته د ساتلو له پاره ورکولې. دا چارې خصوصاً په شکارپور کې ډېرې تر سره کېدې چې کندهار ئې د هند سره تړی. نو د دراني حکومت پر مهال شکارپور د دغسي کارونو په رأس کې وو او بانک لرونکي ئې هندوان ول چې ځانونه ئې ښه شتمن کړل.

خو د دراني واک تر ختمېدو وروسته دغسي چارواکي او مخور یا خو مړه سول او یا هم د سیاسي طوفانونو او ځپېړو له امله وتښتېدل چې تولي پیسې او ګېڼې ئې د هندوانو سره پاته سوې. د مېسن له قوله اکثریت دغه هندوان یا خو امرتسر ته ولاړل او یا هم د کاروبار نورو لویو مرکزونو ته وتښتېدل (هندیان په جنوبي آسیا کې: ۱۴۱ مخ).

خو د تېمورشاه تر مړینې وروسته د نونسمې پېړۍ په لومړۍ لسیزه کې د افغانستان سیاسي وضع خرابه سوه. د واک له پاره د بارکزو او سدوزو شخړو له یوې خوا، او د تېمورشاه د زامنو خپل منځي سیالیو هم له بلې خوا هیواد له هره حیثه کمزوره او بې ثباته کړ. حکومتي اداره کمواکه او بې ځواکه وه. جنګسالاران غښتلي او د قوت په حال کې وو. دا لا څه، په دوهمه لسیزه کې سیاسي وضع نوره هم ورانه سوه او پر مختلفو ولایتونو مختلفو چارواکو حکومت کاوه (مثلاً په هرات کې شاهزاده کامران، په شمال کې مراد بېګ، په کندهار کې څلور بارکزي ورونه یعنې رحمدل، کهندل، شېرین دل او پُردل). دغو چارواکو پر تجارانو او سرکانو محصول وضع کاوه چې په دې جمله کې هندوان او مسلمانان علی السویه ځورېدل. دا ځکه چې دولتي خزانه تشه یا لوټ سوې وه، نو زور ئې تر سوداګرو وتی.

د ختیځ هند د کمپنۍ یو نماینده (چارلس مېسن) په ۱۸۳۶ کې له کندهار څخه لیدنه وکړه او داسې لیکي: «دغه ښار پر څلورو برخو وېشل سوی دئ، چې پر هره یوه ئې یو سردار واک چلوي. کله چې زه د کهندل خان ارګ ته نږدې اوسېدم، نو ځینی کسان مې ولیدل چې د هغو نورو درو ایتلافي ورونو د دربار خوا ته ئې روان کړي وو. په دغو ناخوښه کسانو کې له پنځوس څخه تر سلو پورې هندوان هم شامل وو چې ځیني ئې بې له شکه ډېر محترم اشخاص وو او هغوی ټول سوداګر او کاروباریان وو چې د خپلو کورونو یا دوکانونو څخه راکش کړل سوي وو او پر سرکونو ئې دربار ته روان کړي وو (هماغه: ۱۳۸ مخ).

له دې څخه معلومېږي چې هندوان په کندهار کې تر ټولو ماړه او شتمن خلک وو چې د محتاجو سردارانو پام ئې ور اړولی وو. خو باید داسې قیاس و نه سي چې هندوان اقلیت وو نو ځکه ئې ګواکې د خپلو حقوقو څخه دفاع نه سوه کولای. خبره داسې نه ده، بلکې دغو څلورو سردارانو پیسو ته سخته اړتیا لرله. نو دوی تجاران او کاروباریان لټول او لوټول که به هغوی مسلمانان وو یا هندوان، بس پیسې ئې ترې اخیستې.

د نونسمې پېړۍ په لومړۍ نیمایي کې د کندهار ولایت تر ټولو لوی سوداګران حیات خان او رنجیت سینګ وو. اکثریت افغاني هندوانو تجارت او ښه ګټمن کاروبارونه کول (هماغه: ۱۳۹ مخ).

دې ټکي ته باید ځیر اوسو چې که څه هم هندوان (خصوصاً بډای هندوان) وخت پر وخت د چارواکو له خوا لږ یا ډېر ځورېدلي دي، خو بیا هم په خوښۍ سره اوسېدل. د دې معنی دا ده چې یا خو د هغوی ګټه او عاید خورا ډېر وو، یا دا چې ډېره درنه جریمه یا سزا نه ورکول کېده. یو ځل بیا چارلس مېسن: «ما بیا هم د دې ښار ډېر هندوان ولیدل چې ځیني مراسم به ئې لمانځل. په باغونو کې به راغونډ سوي وو چې ځانونه به ئې په ګېڼو ښه پسوللي وو او له هره پلوه به ښه بډای معلومېدل. د هغوی خوښي دومره ډېره وه چې په یو هندو سلطنت کې هم تر دې نه سوه

اضافه کېدای» (هماغه: ۱۳۹ مخ). د مېسن د سترګو لیدلی حال دا ثابتوي چې د افغاني هندوانو ژوند ژغورلی وو او هغوی بالکل خوشحاله او راضي ول.

هو، د نونسمي پېړۍ په نیمايي کې د افغاني هندوانو، منجمله کندهاري هندوانو تجارت، کاروبار او عاید ښه رونق درلود. د کندهار د هندوانو لوی سوداګران د شکارپور څخه راغلي او دلته میشته سوي ول. هغوی د شکارپور او کراچي له لاري د بمبی سره ډېر ګټمن تجارت کاوه. هغوی له دې لاري برتانوي تولیدات او محصولات واردول لکه: ورېښم، بنبه اي ټوکران، ململ (ډاګه یا خاصه)، چیټ، سمندري محصولات، وړین کوټونه، چاړې او چاقوګان، بیاتي (غیچې)، ستني، تارونه او څرخیان، کاغذ او هم ځیني هندي محصولات لکه نیل، مسالې، بوره، دواوي او نور. دوی هندوستان او پنجاب ته افغاني محصولات هم صادرول لکه: وړۍ، وچه مېوه، تنباکو، کراسته، ورېښم او نور.

مشهور انګریز خبریال (لمسډن) د نونسمي پېړۍ په نیمايي کي راپور ورکړی وو چې په کندهار ښار کي ۹۳۱۰ کورونه سته چې د دې څخه ۳۰۰ ئې په هندوانو اړه لري (هماغه: ۱۴۹ مخ). اکثریت هندوان بزازان (د ټوکرانو خرڅوونکي)، د مسالو رانیوونکي او پلورونکي او صرافان (د پیسو بدلوونکي او حواله کوونکي) ول.

د نونسمی پېړۍ افغاني هندوان په ټول افغانستان کي خپاره او میشته ول. د هغوی نفوس هم خورا زیات وو. د ختیځ افغانستان په کلیو او کوچنیو ښارونو کي به هغوی ډېری وخت په دفترونو خصوصاً هغو حکومتي شعبو کي وظیفې اجرا کولې چې د پیسو او حساب سره به ئې سروکار درلود. دوی به د ټولو متنفذو او پیاوړو اشخاصو د ناظر او خزانه دار دندې هم اجرا کولې.

دا لا څه، موهن لال کشمیري د کابل او نورو ولایتونو څخه د کتني پر مهال د امیر دوست محمد خان د حکومتي عوایدو په ارتباط لیکي چې هندو محاسبانو دقیق عایدات ثبت کړي ول. موهن لال داسي لیکي: «د کابل ولایت د عایداتو په هکله بېلابېل تصورات او محاسبات شتون لري چې یو له بله ډېر متفاوت دي. د کابل ولایت د عوایدو په باره کي زما ځاني معلومات د امیر دوست محمد خان د مستوفي الممالک (میرزا سید حسین خان) او دیوان میترا پر تفصیلاتو له یوې خوا او د بیربل او دیا رام پر اوراقو له بلې خوا متکي دي. پورتني منابع د عوایدو د مجموعې له مخې متفاوت دي او هر یو بېل بېل اعداد او ارقام وړاندي کوي. خو د امیر د وزیر سره د سید حسین ارتباط واضحاً ښیي چې هغه زیات دولتي عواید په خپل جیب کي اچوي. حال دا چې آخیرالذکر دېوانونو (بیربل او دیا رام) حقایق وړاندي کړي دي او اضافي مبلغونه ئې صرف هغه مهال په خپل دېوان کي شامل کړي دي چې حکومت ته رسېدلي وي. لکه څنګه چې د سید حسین د محاسبو له مخي ټول کالني عواید (۲۴۳۱۲۷۱) روپیو ته رسېدل حال دا چې دېوان بیربل دا مبلغ (۲۵۰۹۲۳۸) روپۍ ښوولی دئ. نو په دې

حساب د دېوان بيربل محاسبو څه نا څه (۷۷۹۶۷) اضافه روپۍ د دولت په ګټه ښودلي دي چي دامير وزير خپل جيب ته اچولي دي» (زندګی امير دوست محمد خان: ۲۱۴مخ).

له دې څخه ښکاري چي افغاني هندوانو د دولتي محاسباتو، عايداتو او مالياتو په برخو کي مثبت رول لوبولی دئ او خپل مسؤليت ئې په صداقت سره مخته بېوی او د حکومت او عوامو د پوره باور څخه برخمن وو.

موږ مخکي د مراد بېګ يادونه وکړه چي د نونسمي پېړۍ په لومړيو کي په شمال کي يو محلي واکمن وو. برتانوی سياح (ويليم مورکرفټ) چي په کندز کي ئې د مراد بيګ له درباره کتنه کړې وه ليکي چي: «موږ پر خپله لاره د غزني څخه په ورتېرېدو سره هلته د ګمرک د يو هندو افسر سره مخامخ سوو چي (بيساکی رام) نومېدی. د هغه وظيفه دا وه چي زموږ غوټي او بکسونه حساب کړي او راپور ئې خپل لوی آمر ته ورکړي. اتما رام د کندز د مراد بيګ دېوان بيګي (لوی وزير) وو. د مراد بېګ تر واک لاندي د کښته رتبې نور ډېر هندو مامورين هم په دندو ګومارل سوي ول چي هغوی عموماً د ماليې په دفترونو کي کار کاوه». مورګرفټ زياتوي چي د مراد بېګ تر واک لاندي سيمه کي زيات هندوان اوسېدل او د محلي اوسېدونکو له خوا احترامانه وضع ورسره کېدله (هنديان په جنوبي آسيا کي: ۱۴۰مخ).

دا لا څه، الفنستن چي په ۱۸۰۷ کي په پېښور کي د شاه شجاع له درباره کتنه کړې وه، ليکي چي هندوان په مرکزي او ولايتي حکومتونو کي پر لوړو دندو ګومارل سوي ول. دوی زياتره په دربار کي په داسي کارونو ټاکل سوي دي چي د پيسو يا حساب سره سروکار لري. د هر يوه مترکس له پاره د ناظری او خزانه داری وظيفه د پارسيوان يا هندو پر غاړه ده. هندوان په ولايتونو کي آن حکمرانان ول او همدا اوس هم د پېښور لويه حکمراني د دغه مذهب يوه کس ته سپارل سوې ده (د کابل سلطنت بيان: ۳۲۱مخ).

په هر صورت، د پورته لنډ وضاحت څخه ښکاري چي افغاني هندوان (او سيکان) د نونسمی پېړۍ په اوږدو کي ډېر ښاد او آباد ول. هغوی په سر تر پايه ټول افغانستان کي اوسېدل خو په لويو ښارو کي ئې شمېر ډېر وو. د افغاني هندوانو اکثريت دکانداري او سوداګري کوله. هغوی د مذهبي پلوه ځانونه د هند سره تړلي بلل، خو د کلتوري او ملي پلوه کلک افغانان ول. محمد حيات خان په ۱۸۶۵ کي خپل د سترګو ليدلی حال داسي بيانوي: «په ټول افغانستان کي هندوان شته دي، او په لوېديځ کي د عربو تر ملک پوري په ځينو ځينو ځايونو کي هندوان تر سترګو کېږي....

د افغانستان په لويو ښارونو کي هندوان ډېر دي. د ختيځ افغانستان په هر کلي کي د دوی يو يا دوه کوره سته، خو د کابل په ښار کي ئې شمېر ډېر دئ. د لوېديځ افغانستان په کليو کي هم يو يا دوه کوره هندوان سته. دوی په دکانداری، دلالی، صرافی او زرګری بوخت دي. ځيني ئې د کرکيلې چاري هم تر سره کوي.

د افغانستان هندوان زياتره کهتري او اروړې دي، خو لږ شمېر سيکان هم سته. د افغانستان هندوانو د هندوستان زياتره رواجونه ترک کړي دي. دوی ډېری پر پړدي او پوښاک ئې هم د دغه ملک اوسېدونکو ته ورته دئ. دوی په تناره پخه سوې ډوډۍ خوري او د خپل معمول غسل خيال هم نه ساتي.....

په افغانستان کې د پخوانيو هندوانو د بت پرستۍ آثار او نخښې نښانې موجودې دي. د کابل شمال خوا ته آق سرای ته نږدې يوه سمڅه موجوده ده او هندوان دغه سمڅه سپېڅلې ګڼي. د لوګر په خوشي کي هم يوه چينه موجوده ده چې هندوان ئې سپېڅلې ګڼي.

څرنګه چې هندوان په افغانستان کي خواره واره ميشته دي، نو له دې کبله د دوی ټول شمېر څرګند نه دئ او نه ئې يقيني په ډاډ سره ليکلی سم، خو داسي اټکل کېدای سي چې په ټول افغانستان کي د يو لکو کورونو څخه ډېر هندوان آباد دي، خو دوی کمزوره او خواره واره دي او ذليل شمېرل کېږي» (حيات افغاني: ۴۷۹ مخ).

په هر حال، د نونسمي پېړۍ په وروستيو لسيزو کي خصوصاً د امير عبدالرحمن خان د واک پر مهال هندوان اکثره د هيواد په ښارونو او تجارتي مرکزونو کي اوسېدل خو د ختيځ افغانستان په کليو کي هم ميشته ول.

څنګه چې هندوان اهل الکتاب نه ول، نو مجبور ول چې د اسلامي شريعت له مخي دولت ته جزيه ورکړي. په بدل کي هغوی اجازه لرله چې خپل مذهبي مراسم ادا کړي. ويل کېږي چې د جزيې مبلغ يو څه ډېر وو او وخت پر وخت بدلېدی يعنی لږېدی يا ډېرېدی. لکه څنګه چې هر هندو به له دې درکه د کاله پنځه روپۍ حکومت ته تحويلولې.

هندوانو کولای سوای چې خپل ځانګړي مکتبونه ولري. په دغو ښوونځيو کي د هغوی کوچنيانو ته هندو دين او کلتور ورزده کېدی. هغوی به د مسلمانانو سره کومه شخړه او لانجه د اسلامي شريعت پر اساس حل او رفع کوله. خو د هغوی خپل منځي شخړي به د دوی د خپل دين (د هرما شاسترا) مطابق حل او فصل کېدلې.

امير عبدالرحمن خان چې پر خپلو مسلمانو اتباعو باندی په ظلم او شدت کي ډېر شهرت درلود او سخته سزا به ئې ورکوله، برعکس د هندوانو سره ئې رويه نرمه وه.

د امير عبدالرحمن خان د واک پر مهال ډېرو برَهَمَنانو ته په حکومت کي لوړي څوکۍ ورکول سوي وې. د مثال په توګه (نرنجنداس) ته د ډګرمن افتخاري دريځ عطا سوی وو. د پنځو هندو مشرانو يوه شورا جوړه سوې وه چې د هندو آئين او دين له مخي اول خپل منځي غوښتني، شخړي او مسألې تر نظر تېري او تدقيق کړي بيا ئې نو د هدايت له پاره امير ته وړاندي کړي.

امير عبدالرحمن خان د خپلو هندو او مسلمانو اتباعو ساتنه او ژغورنه په مساويانه ډول کوله. د هندوانو دارايي او جايداد په افغانستان کي خوندي وو. هغوی هڅول کېدل چې د هندوستان سره ډېر تجارت

وکړي. دا لا څه، امیر حتی په هند کې هم د خپلو هندو سوداګرو ګټې ساتلې.

ګوبن داس یو افغان هندو سوداګر وو چې په هند کې ئې شتمني غلو لوټ کړه. کله چې امیر له دې پېښې خبر سو، نو د ګوبنداس د ټولي دغه شتمنۍ یو اوږد او مشرح لیست ئې برابر کړ او هغه ئې د هند حکومت ته ولېږی او د برتانوي مقاماتو څخه ئې هغه ته د دې زیان اداینه او معاوضه وغوښته (هندیان په جنوبي آسیا کې: ۱۴۲ مخ).

دا لا څه، امیر په شِمله کې خپل نماینده (جنرال امیر احمد خان) ته هم هدایت وکړ چې د دغه افغان سوداګر د غلا سوي مال د بیرته ورکولو په غرض د هند پر حکومت ټینګار وکړي. افغان استاځي هم د هند د حکومت خارجه وزیر (ګرنټ) ته د ۱۸۸۳ د اګسټ پر اتمه د دې غلا سوي مال معلومات او هم ئې د دې غلو د مشر (سکندر خان) نوم ورکړ (هماغه: ۱۴۲ او ۱۴۹ مخونه).

له دې نه ښکاري چې د افغاني هندوانو سره د امیر عبدالرحمن خان غوندي سخت طبیعته او ظالم پاچا دومره خواخوږي وه، نو د نرم دریځه واکمنانو رویه به د هغوی سره څومره دوستانه او مخلصانه وه.

که د حکومتي پاملرنې او توجه څخه تېر سو، په ټولیزه توګه عوامو هم پر هندوانو زیات اعتماد کاوه. فرانک مارټین یو برتانوي پانګوال او انجینیر وو چې په کابل کې ئې اته کاله تېر کړي ول. هغه شپږ کاله د امیر عبدالرحمن خان او دوه کاله هم د امیر حبیب الله خان د واک پر مهال په کابل کې د صنعتي پروژو او ورکشاپونو سرانجینیر او مسؤل وو. د هغه فارسي او اردو ژبې ښه زده وې او د کابل ټولي سیمې ئې تر ښو کتلي وې. د دربار، چارواکو او عادي خلکو له حالاتو پوره واقف وو. پر امیر عبدالرحمن خان او بیا پر امیر حبیب الله خان ډېر ګران وو او تل به ئې نږدې ارتباط ورسره درلود. دی د کوڅه و بازار په حالاتو هم ښه بلد او خبر وو. فرانک مارټین په کابل کې د خپلې اته کلنې استوګنې ټول عمده خاطرات، د خلکو انګېرنې، د واکمنو کړنې، د افغانستان سیاسي او اقتصادي او اجتماعي حالات وروسته د یو کتاب په شکل خپاره کړل چې ټول عیني شواهد او د سترګو لیدلي حالات دي. نوموړی د کابلي هندوانو په باره کې داسې لیکي:

په کابل کې د هندوانو یوه کالوني سته چې څو نسله ئې هلته تېر کړي دي. دوی هغه شان خلکو ته پیسې په پور ورکوي، لکه په نورو هیوادو کې چې ئې یهود ورکوي. دوی دغه راز د زرو او قیمتي ډبرو تقریباً ټول کاروبار په لاس کې لري او په وروستیو کلونو کې اکثره کورنۍ له دې امله چې د ژوند د اړتیاوو د قیمتونو جګېدو له امله له لوږي څخه ځانونه وژغوري، مجبور سوي دي چې خپل زېورات وپلوري. هندو که پر یوه شي باندي کومه بیه کښېښووله، هغه باید د نوموړي شي د ارزښت له دوه پر درې برخي څخه هیڅکله زیاته و نه ګڼل سي. خلک چې کله پر یو بل باندي کوم شی خرڅوي، په خپلو منځو کې وایي، چې هندوانو په دومره پیسو غوښت. معنا دا چې د دوی له خوا ایښوول سوې بیه یو مناسب

قیمت دئ. ځینی هندوان د خزانې په دفترو کي مقرر سوي دي او تر میرزایانو هم زیات معتمد خلک او هم ښه محاسبین دي (د پولادي امیر تر سیوري لاندي: ۱۹۳ ـ ۱۹۴ مخونه).

فرانک مارټین دلته څو مهمو ټکو ته اشاره وکړه:

لومړی دا چي افغاني هندوان (منجمله کابلي هندوان) د افغانستان بومي او پخواني وګړي نه دي بلکي دې هیواد ته راکوچېدلي دي.

دوهم دا چي ځینو هغوی په دولتي دفترونو (خصوصاً مالي او پولي ځانګو) کي کارونه کول او د دولت د پوره ملاتړ، باور او ساتني وړ وو.

دریېم دا چي زیاترو هندوانو شخصي او آزاد کاروبار کاوه چي هغه د اسعارو، بانکي فعالیتونو او نقدي معتبرو معاملاتو ځانګي وې.

څلورم دا چي د کار دواړه برخي (دولتي وظایف او ځاني کاروبار) ئې ساتلي او ژغورلي ول او د هیڅ ډول خنډ، تهدید او خطر سره مخامخ نه ول.

پنځم او تر ټولو مهم دا چي هغوی د حکومت او ملت دواړو ډېر اعتماد له ځانو سره درلود او هره خبره یا فیصله ئې د زړه له اخلاصه منل کېدله.

مطلب دا چي افغاني هندوانو د نونسمي پېړۍ په وروستیو او د شلمي پېړۍ په لومړیو کي د پخوا غوندي په مالي او اقتصادي فعالیتونو کي لوی لاس درلود چي په عین حال کي د حکومت او عوامو د بشپړ باور څخه هم برخمن ول. دا چي افغاني هندوان د پوره او هر اړخیزه اعتماد وړ ول نو پر هغوی به د مذهبي فشار او جبر ادعا صحت و نه لري لکه ځیني تاریخ پوهان چي ئې انتقادوي. مثلاً میر غلام محمد غبار لیکي چي امیر حبیب الله خان د خپلو نرمو تګلارو او اصلاحاتو سره سره د خپل واک په پیل کي امر وکړ چي د افغانستان هندوان مجبور دي چي ژړي لنګوټې به تړي او ښځي به ئې ژړي بغرې (برقع) اغوندي تر څو له نورو متمایز وي. همدا راز هغو کسانو ته چي مسلمانان کېږي باید د دولت له خوا د ۳۰۰ څخه تر ۶۰۰ پوري نغدي روپۍ او یوه جوړه کالي د انعام په توګه ورکړه سي (افغانستان در مسیر تاریخ: ۷۰۰ مخ). خو دلته څو انګېرني او ملاحظات سته چي دا دي:

لومړي دا چي دغه ادعا نورو معتبرو آثارو او عیني شواهدو (منجمله سراج التواریخ او نورو) نه ده ذکر کړې.

دوهم دا چي مرحوم غبار د خپلي دغي ادعا منبع او مأخذ هم نه دئ ذکر کړی.

دریېم دا چي ثابته نه ده چي امیر حبیب الله خان د خپل واک په اوږدو کي همدا فشار جاري ساتلی وو که ئې بیرته لغو کړی دئ. ځکه یو خو دا چي امیر وروسته خپلي ځیني تګلاري بیرته فسخ او یا هم نرمي کړې او دوهم دا چي د ۱۹۰۷ په جنورۍ کي ئې د برتانوي هند څخه د کتني پر مهال د علیګړه په اسلامي پوهنتون کي یوې لویې غونډې ته په ډاګه وویل چي: «ما په خپل هیواد کي د

شیعه او سني، هندو او یهودي د آزادیو تضمین عملي او تطبیق کړی دئ» (جنبش مشروطه خواهی در افغانستان: ۱۱۹ مخ، د لندن د ۱۹۰۷ د جنورۍ د ټایمز په حواله).

بل دا چې دېوان نرنجن داس هغه مشهور او معتمد هندو وو چې د امیر حبیب الله خان مالي او حسابي تکیه ئې جوړوله. اوځار امریکایی څېړاند (پروفیسور لوډویک اډامیک) په ۱۹۷۵ کي لیکلي دي چې: «امیر حبیب الله خان د نرنجنداس سره ډېر ښه سلوک او چلن کاوه او د هغه د ډېر باور او اعتماد وړ وو. د پیسو برات یا حواله تر هغو نه ټاپه کېده او نه هم اجرا کېده تر څو نرنجنداس لاسلیک کړی نه وای... په ۱۹۰۶ کي د ملکي ډګروالۍ افتخاري رتبه هم ورکول سوه. د همدې کال په نوامبر کي د مالیې د وزیر میر احمد شاه تر مشرۍ لاندي وټاکل سو چې بیا په ۱۹۱۲ کي د مستوفي محمد حسین خان وظیفه ده ته وسپارل سوه چې هماغه د ټول افغانستان څخه د مالیو حصول او راټولول ول» (د افغانستان مشاهیر: ۲۰۷ مخ).

نو پوښتنه دا ده چې که امیر حبیب الله خان له یوې خوا د هندوانو پر مشر باندي دومره ټینګ باور کوی، د هغه سره ښه چلند کوي، افتخاري درېځونه ور عطا کوي، او تر ټولو مهمه دا چې حساس دولتي مقامونه ورسپاري خو له بلي خوا کرهاً او جبراً فرمان صادروي چې د هغوی نرینه باید حتماً ژړي لنګوټې وتړي او ښځینه ئې باید ژړي بغرې واغوندي، آیا داسي ضد او نقیض عمل امکان لرلای سي؟ آیا داسي خو به نه وي چې دغسي جبري فرمان به صرف د کاغذ پر مخ وو بلکي عملي اړخ به ئې نه درلود؟! په هر صورت، داسي ضد او نقیض برخورد (هغه هم د واکمن لخوا) محال ښکاري. نو څکه پوښتنه پیدا کېږي چې آیا د امیر دغه فرمان به رښتیانی وی او که به ئې په علیګړهـ کي نوموړې عامه وینا حقیقت وي؟! که بالفرض د امیر پورتنی ادعا درواغ وي (چې هماغه د شیعه او سنی، هندو او یهودو د آزادیو ضمانت وو) نو بیا هغه څنګه د معتبر مېلمه او مهم واکمن په حیث په برتانوي هند کي د انګریزانو، هندوانو او مسلمانانو په مخ کي داسي لوی درواغ ویلای سول او څنګه د لندن ورځپاڼو او هندي منابعو نه رسوا کاوه؟ پس بهتره دا ده چې فعلاً دغه مُتنازع فیهِ مسأله معتبرو منابعو او راتلونکو څېړنو ته پرېږدو. (نور بیا)

د دې برخي مربوط اخځونه:


۱. هندیان په جنوبي آسیا کي [د افغانستان اړونده برخه]؛ عبدالعلي ارغنداوی، مصحح : آی. جي. بهادر سینګ، نوی ډیلي، ۱۹۸۴.
۲. زندگی امیر دوست محمد خان؛ موهن لال کشمیری، (جلد اول)، مترجم: پروفیسور سید خلیل الله هاشمیان، نشرات آئینه افغانستان در کلیفورنیا (امریکا)، ۲۰۰۲.
۳. د پولادي امیر تر سیوری لاندي؛ فرانک اې. مارټین، ژباړن: محمد معصوم هوتک، دانش کتابتون، پېښور، ۲۰۰۴.

۴. افغانستان در مسیر تاریخ؛ میر غلام محمد غبار، دولتی مطبعه، کابل، ۱۳۴۶ (۱۹۶۷).
۵. جنبش مشروطه خواهی در افغانستان؛ پوهاند سید سعدالدین هاشمي، (چاپ دوم)، شورای فرهنگی افغانستان، سویدن، ۲۰۰۱.
٦. د افغانستان مشاهیر؛ لوډویک ډبلیو. اډامیک، ګرېز، اطریش، ۱۹۷۵.
۷. د کابل سلطنت بیان؛ مونټ سټیوارټ الفنسټن، ژباړن: پوهاند محمد حسن کاکړ او نصرالله سوبمن، (دوهم چاپ) دانش خپرندویه ټولنه، پېښور، ۲۰۰۸.
۸. حیاتِ افغانی؛ محمد حیات خان، ژباړونکي: محقق فرهاد ظریفی او محقق عبدالطیف یاد طالبی؛ سریزه، تحشیه او تعلیقات: اکاډمیسین عبدالشکور رشاد، (دوهم چاپ)، دانش خپرندویه ټولنه، پېښور، ۲۰۰۷ میلادي.

***

ټولوونکی: حاجي محمد رزمي

## ګل خبري

- د سختو کارونو کول اسانه دي ځکه د هغو په کولو کي رقابت نسته.
- تاریخ ښوولې ده چي ځیني خلک هغه وخت معقوله لاره غوره کوي چي نوري ټولي لاري ئې ازمایلي وي.
- دا ښه ده چي سړی خوله پټه ونیسي او بې عقل ښکاره سي تر دې چي خبري وکړي او دغه شک په یقین بدل سي.
- ستا له اجازې څخه پرته هیڅوک تا توهینولای نه سي.
- د چلند کمزوري د شخصیت په کمزوری بدلېږي.
- زه هغه وخت ډېر غښتلي وم چي پر خپله کمزوری باندي مي وخندل.
- نن هغه سبا دئ چي ته ئې پرون په اندېښنه کي وې.
- تر ټولو ښه ښکلا هغه ده چي پخپل ځان خبره نه وي.
- هیڅ وخت د احمق سره دلایل مه وایه ځکه ښایي خلک ستاسي تر منځ په توپیر پوه نه سي.
- هغه نارینه ډېر نېکمرغه دئ چي د ښځي له پاره لومړي عشق وي خو هغه ښځه نېکمرغه ده چي د نارینه له پاره وروستی مینه وي.
- د خبرو په جګړه کي دواړي خواوي د خوړېدو ادعا کوي خو د توپک په جګړه کي حتي زخمي سوی طرف لا هم خپل ځان فاتح بولي.
- خاموش کسان د ویلو له پاره زیات شیان لري.
- کله کله د ځان سره فکر کوم چي ایا نارینه او ښځي یو د بل سره وړ دي که نه؟ خو ښه به وي چي دوی یو د بل په ګاونډ کي سره واوسېږي او کله کله ملاقات سره وکړي.



څېړندوی عبدالغفور لېوال/کابل

# اسطوره او ادبیات

لومړۍ برخه

انسانانو، کله چې احساس کړه مرګ حتمي دئ، نو د خپل ژوند د زمانې تر پولو بهر ئې د خپل تخیل نیلی وځغلاوه. انسان زړښت او کمزوري تجربه کړه او دائې د مرګ استازې زمانه وګڼله، له ډېري پخوا زمانې څخه انسانانو د تلپاته ژوند، اوږدمهالي ځوانۍ او تلپاته ځواک هڅه پیل کړه. په هغو زمانو کې چې د وېري، اوهامو، خیالونو او وهمي ایډیالونو ځای لا تفکر، تجربې او پوهې نه وو نیولی انسانانو تر حقیقي نړۍ ورپورته، تر طبیعیت بهر د خارق العاده ځواکونو پلټنه پیل کړه، دا ځواکونه د انسانانو د تخیل زېږنده ول، نو ادبیاتو ته ئې هم ورمخه کړه، په خورا لرغونو سرودونو، افسانو او شعرونو کې د اسطورو حضور تر هر بل څه ډېر دئ، حتی ویلای شو، چې پر لویه برخه لرغونو ادبي اثارو د اسطورو حکومت چلېږي.

د یوې ناڅرګندي راتلونکي په اړه د انسان پوښتنو، له طبیعي پېښو څخه وېري او اوهامو انسانان مجبور کړل، چې د کوډګرو، د خوبونو تعبیروونکو، کیمیاګرو، ګرځنده (کوچي) پالګرو (پال لیدونکیو)، فیلسوفانو، مذهبي مبلغانو او ان شاعرانو څخه مرسته وغواړي، چې څه به پېښېږي؟ ولي پېښېږي او د دوی راتلونکې به څه وي؟ مخاطبانو هم د خوابونو د موندلو له پاره تخیل ته پناه وړله او اسطورې د دوی د تخیل، تفکر او تجربو له ګډ شعور څخه رازېږېدلي، دغه ځوابونه بیا له یوه نسل څخه بل ته لېږدېدل او پر ځینو ئې زیاتوني کېدلي، د دې له پاره چې دغه ځوابونه

د قناعت تر څنګ د اورېدونکي یا لوستونکي ښکلاخوښوونکی (استیتیک Aesthetics) ذوق هم خړوب کړای شي او د هنري ارزښت په مټ تلپاته کړای شي، دغو څوابونو ته ادبي ارزښت وروبخښل شو. د ادبیاتو او اسطورې ملګرتیا له همدې ځایه پیل شوه او د بشري پنځوونو په تاریخ کې خورا لرغونې ملګرتیا ده. ویل کېږي، چې انسانانو د بېلابېلو ښکارندو (پدیدو) د توجیه کولو له پاره دوه غیرعقلي پړاوونه تېر کړي دي، لومړی ئې جادو او دوهم ئې د اسطورو پنځول او له اسطورو سره ژوند کول.

اسطورو د ادبیاتو په مرسته ځان تلپاته کړ او د ادبي – هنري څوک په مټ ئې د ملتونو د تولیز هویت یوه برخه ځانته بېله کړله. ورو ورو ادبیاتو اسطورو ته د ملتونو د شفاهي تاریخ دریځ وباخښه او حتی د فلسفې او پوهې اساطیري دوره ئې هم رامنځته کړله. اسطورې هغو ورېښمو ته ورته وې، چې د ادبیاتو کاروان له لرغوني زمانې څخه نویو نسلونو ته رالېږدولې. په هنر او ادبیاتو کې اسطورې داسې ځای ونیوه، چې نننی هنرونه او ادبیات هم ورڅخه تش نه دي، نن هم د شاعر او هنرمند هڅه دا ده چې له مادي او عقلي نړۍ څخه زموږ ستومانه ذهن د اسطورو په زړه پوري دنیا ته بوزي، په شعرونو کې لاهم ښاپېرۍ، دېوان، ښاماران لروبر کېږي او د لرغونیو اسطورو نوی حضور وینو. جرمني ګویته د نولسمې پېړۍ په لومړنیو کلونو کې د یونان نامتو اسطوره (هېلن) بېرته راژوندۍ کړه او خپل اتل (فاوست) ئې پرې مین کړ.

پوهاند مجروح په شلمه پېړۍ کې د انسان د نفس ښامار تمثیل کړ او خپل اتل (د نیمو شپو لاروی) ئې د هغه جګړې ته ولېږه. هالیود (د امریکا سینمایي کمپنۍ) لا هم د (زبرپهلوان Superman) او (غڼه پهلوان Spider - Man) نومهالي اسطورې رامنځته کړې. له دې ټولو څخه څرګندېږي، چې د انسانانو ذهن هر څومره چې عقلي او پرمختللی شي، بیا هم تر عادي بشري نړۍ پورته څواکونو ته ئې سودا وي، داسې کنجکاوي د انسان لرغونی عادت دئ، لا هم اسطورې ته اړتیا شته، یوازینی توپیر چې ګورو ئې دا دئ، چې د اسطور حضور ورو ورو له عقیدې، ورځنې ژوند او عمل څخه ادبیاتو، هنر او ذوق ته ورلېږدېدلی دئ. دې اصل ته په کتلو، چې هره اسطوره د یوه ریښتیني داستان روایت دئ، چې یو مهال ئې له زماني او مکاني پلوه وجود درلوده، نو په تولیزو باورونو کې ئې له شتون او افسانوي ماهیت څخه ادبي ارزښت ته ډېر پام کېږي. د اسطورې ریښتینی داستان په ادبیاتو کې ځانګړی زمان او مکان له لاسه ورکوي او د تخیل او هنري ارزښتونو په مرسته له سره ایجادېږي، په دې ډول ګورو چې ادبیات د اسطورې وجودي ماهیت رااخلي او د هنري سینګار په مرسته ئې تلپاته کوي. اسطوره هستونه د انساني ذهن یوه ځانګړنه ده، په دې توګه انسان هیڅکله هم د نویو اسطورو له ایجاد څخه ځان نه شي ژغورلای، تخیل د انساني ذهن هغه څواک دئ، چې د ګڼو علمي تیوریو د رامنځته کېدو سرچینه ګرځېدلې ده، خیال هماغومره چې په ادبیاتو او هنر کې

مهم دئ، د ساينسي تفکر له پاره هم مهم دئ، کارل ګوستاو يونګ باور لري، چي الوتونکي بشقابونه د انسانانو نومهاله (معاصري) اسطورې دي.

ايا فکر نه کوئ، چي د ساينسي تفکر او تخيلي خواک د تلافۍ په تکي کي به ئې د معاصرو اسطورو په توګه رامنځته کړې وي؟ يونګ فکر کوي، چي د الوتونکيو قابونو په اړه زموږ تصورات هم له زړو اسطورو سره تېينګه اړيکه لري، د بېلګې په توګه د دغو الوتونکيو بېړيو يو شمېر اوسېدونکي د يوې سترګي خاوند موجودات ګڼل شوي دي، چي دا د لرغوني مصر له يوسترګيو اسطورو سره اړيکه لري: "د يوې سترګي مضمون، چي په خوب کي د الوتونکيو بشقابونو تمثيل کوي، د مصر له لرغونيو اسطورو څخه سرچينه اخلي او هغه د هوروس ( Horus ) سترګه ده ..." (اسطوره نو، يونګ – ۷۳).

د الوتونکيو قابونو کيسي په معاصرو ادبياتو کې پريمانه دي، له ساينس فکشن ( Science Fiction) کيسو څخه نيولې تر معاصري شاعرۍ پوري، له دې څخه پايله اخلو، چي دا يوازي زړې اسطورې نه دي، چي په ادبياتو کي حضور لري، بلکي بېشمېره نوي اسطورې هم راپنځېږي او د ادبياتو نوي اثارو ته د الهام سرچينه ګرځي.

کله چي اسطورې له مذهبونو او عقيدو څخه بېلي شي، نو خپل حضور په ادبياتو کي ساتي. د اسطورې او ادبياتو د اړيکو په اړه څېړني ښيي، چي دواړه يو له بل پرته په بشپړه توګه نه شي مطالعه کېدلای، په ځينو بحثونو کي دواړه دومره سره نږدې شي، چي ادبيات د اسطورو د تلپاته کېدا له پاره يوازينی ارزښت ګڼل کېږي دغه نږدېوالی دوه بنسټونه لري، يو هغه ګډون چي دا دواړه ئې په انساني تخيل کي لري او يا ښه به وي چي ووايم هغه ژور اغېز چي ادبيات او اسطورې ئې پر انساني تخيل باندي لري او دوهم په ادبياتو او اسطورو کي د مفاهيمو د ګڼ اړخيزه تعبير او تفسير له مخې، چي پر بنسټ ئې د بشري تاريخ په اوږدو کي د ادبياتو او اسطورې موازي حرکت تر نن پوري رارسېدلی دئ او ښېښکه چي تر راتلونکيو زمانو پوري به ئې هم وغځوي.

د پير آلبوې په نظر: "د ادبياتو او اسطورو تر منځ ژوري اړيکي شته، چي ان کړای شو هغوی سره ورته وبولو او ادبيات د اسطورو ساتونکې او د تکيې ځای وګڼو" (خراسان مجله: ۱۴۲).

د اسطورو د پېژندني او يا هم د هغوی د رامنځته کېدو منطق په هر هغه ځای کي چي ګونګ او مبهم دئ، د ادبياتو په مرسته روښانه کېږي، د زړو زمانو اسطورو ته د نوي اروا پوهني لاسرسی هم د ادبياتو له برکته ممکن شوی دئ.

### اسطوره او حماسه:

ډېر ځله په ادبياتو کي د اسطورې او حماسې حضور دومره سره نږدې شي، چي توپيرول ئې سخت کار بريښي. دا سمه ده چي حماسي اسطورې او اساطيري حماسې شته، چي د دواړو تر منځ د بېلتانه پېژندل ډېر دقت

غواړي، خو د ماهیت او پېژاند (تعریف) له مخي ـ په تېره بیا په ادبي حوزه ـ کي د دې دواړو مفاهیمو تر منځ جوت او ښکاره توپیرونه شته. موږ په تېرو بحثونو کي اسطوره پېژندلې وه، په ادبیاتو کي به ئې له حماسې سره د توپیرونو، اشتراکاتو او اړیکو د لا ښې پېژندني له پاره ښه وي، چي د حماسې له پېژندني څخه پیل وکړو.

حماسه په لغت کي زړورتیا ته وایي او په اصطلاح کي د وصفي شعرونو هغه ډول دئ، چي د یوه قوم یا وګړي د پهلوانیو، مېړاني او ویاړونو کیسه پکښي تمثیل شوې وي. (دایره المعارف ادبی: ۵۱۴).

حماسه (له عربي څخه د زړورتیا په مانا) له ادبي انواعو څخه (چي اغلب په شعر کښل شوې وي یا حماسي منظومې وي) د قومي، ملي یا توکمیزو پهلوانیو، جګړو، مېړانو، ویاړونو داستانونو ته ویل کېږي (دایره المعارف فارسي: ۸۶۴).

له دې دوو سره ورته تعریفونو څخه پوهېږو چي حماسه د وګړیو (فردي یا جمعي) پهلوانیو او مېړانو داستاني روایت دئ. په لاتین کي حماسې ته Epic وایي. لوېدیځوال د حماسي ادبیاتو پیدایښت د یوناني پهلوانانو، اساطیري اتلانو او ارباب الانواعو په پېښو پوري تړي.

کره کتونکي د حماسي اثر له پاره لاندیني شپږ ځانګړني شماري:

١. د کیسې په طرح کي د داسي یوه اتل شتون، چي فوق العاده ځانګړني لري او هغه کار چي نور ئې نه شي کړای، دی ئې د یوه لوی ځواک په ملاتړ تر سره کوي.

٢. د عادي بشر تر توان پورته بریالیتوب تر لاسه کول، چي بشپړول ئې د نورو په توان کي نه وي.

٣. د ټاکلي زمان او مکان له محدودې څخه بهر وي او یوه پراخه عیني او ذهني زمینه ولري.

۴. د ماورالطبعي (تر طبیعیت پورته) موجوداتو یا د هغوی د ځواک موجودیت.

۵. د حماسي اثر د بیان سبک باید ځانګړی او تر عادي سبکونو لوړ وي، چي حماسي لحن ئې د تشخیص وړ وي او په ټول اثر کي د سبک دغه ځانګړنه وساتل شي.

٦. شاعر یا لیکوال ئې د خپل اثر پر ټول پرمختیایي بهیر حاکم او حاوي وي، په دې به پوهېږي، چي کیسه کوم هدف خواته ځي.

له دې شپږو ځانګړنو څخه پوهېدای شو، چي اسطوره له حماسې سره کوم توپیرونه لري، اسطوره یوازي هاغه مهال له حماسې سره ګډه پوله مومي چي له بشري ځواکه ورپورته ځواکونه ئې مرستې ته راشي او یا هم دی له غیر بشري قدرتونو سره مخامخ شي، یوازي دلته هم د اسطورې شتون لازمي نه دئ، غیربشري ځواک باید خپل اساطیري ماهیت خامخا ولري. د حماسې په پورته یادو شویو ځانګړنو کي لومړۍ او څلورمه ځانګړتیا د اسطورو مداخلي ته لاره هواروي.

خو له توپیرونو سره سره د اسطورو او حماسو ګډ حضور په ادبیاتو کي تر دې بریده دئ، چي د دواړو د ګډي مطالعې او څېړني اړتیا پېښېږي، کېدای شي اسطورې هیڅکله حماسي ځانګړني و نه لري، خو حماسې د اسطورو له ملګرتیا پرته نیمګړي ښکاري.

یو شمېر څېړونکي خو تر دې بریده مخکي ځي چي حماسه له اسطورې څخه راز پړیدلې بولي: "حماسه له اسطورې څخه رازیړیدلې ده، اسطوره هغي روزونکي مور ته ورته ده، چي حماسه زېږوي او په خپله لمنه کي ئې روزي او ستروي یې، ریښتیني او بنسټي حماسه پرته له دې چي د اسطورې له زړه څخه راووزي، نه شي رامنځته کېدای. حماسه یوازي د هغو خلکو په فرهنګ او ادبیاتو کي راځرګندېږي، چي لرغوني تاریخ او زړې اسطورې ولري. هغه حماسې چي له اسطورو څخه نه وي زېږېدلې ریښتیني حماسې نه دي، یوازي ئې شکل و شمایل حماسې ته ورته دئ" (رویا، حماسه، اسطوره: ۱۸۳).

داسي فکر هم شته، چي حماسه د اسطورې هنري روایت دئ، په ادبیاتو کي د اسطورې انعکاس او تبلور د حماسو په جوله کي وینو. د حماسې رواني بستر په انسان کي دننه د هغو تمایلاتو له جګړې څخه جوړېږي، چي یو له بل سره مخامختیا او دښمني لري. حماسه د ناسازګاره ځواکونو جګړه ده، ښایي دوه عام قالبونه ئې (خیر) او (شر) یا (نیکي) او (بدي) وي، د اسطورو دنده هم همدا ده چي د دغو دوو سره دښمنو ځواکونو استازیتوب وکړي. په ظاهره (شر) ګټونکی برېښي، خو پایلیز بری د (خیر)وي. په هنر او ادبیاتو کي که شر برلاسی وو، نو (تراژیدي) زېږوي. عجیبه دا ده چي حماسه او اسطوره دواړه د همدې تضاد د مبارزې لیکه تعقیبوي او د دوی د اوږدمهالي تاریخي جدال هنري بیان د ادبیاتو وظیفه ده.

خوشال بابا وایي:

خبر د دهــر په مکـــــــــر دروه شوم
دا څه چي ښــاد شــم یا په اندوه شوم
نه ئې ښادي شــته نه ئې اندوه شـــته
دواړه فساد دئ چي ښه پرې پوه شوم
خوشال کلیات ۳۸۳

حماسي ادبیات زموږ له لرغونیو رواني غوټو (عقدو) سره اړیکه لري، موږ په خپله زړه ناخوداګاه کي د شر او بدۍ په وړاندي عقده لرو، حماسي ادبیات زموږ د عقدې سېمبول راپېژني، بیا ئې د خیر سېمبول ته په مخه ورولي او جګړه پیلېږي، دا جګړه هممهال هم په ادبي اثر کي او هم زموږ په روح کي روانه وي، دواړي جګړې د تخیل په مزي سره تړلي دي، جګړه هغه مهال هیجاني کېږي، چي د شر یا بدۍ سېمبول په برلاسۍ زموږ پهلوان تر فشار لاندي راولي، همدلته ده چي اسطورې مداخله کوي او جګړه د (خیر) د سېمبول په ګټه پای ته رسوي. ادبي اثر مخامخ زموږ زړې عقدې تر ګوزار لاندي راولي او په دې ښه ځان ابدي کوي.

ګېل ګمېش د بشر تر ټولو لرغوني موندل شوې لیکلې حماسه د انسانانو له هغي زړې اساطیري تندي سره اړیکه لري، چي له

مرګ څخه د خلاصون او تلپاته ژوند ته د رسېدو له پاره ئې لري. ګېل ګمېش غواړي په اسمانونو کي خپل نیکه (او ته نه پېش تم) وومومي، د ده نیکه په لوی توپان کي د بشریت نسل ژغورلی وو، بېړۍ ئې جوړه کړې وه او خپل پیروان او له ټولو ژوندیو موجوداتو څخه یوه یوه جوړه ئې پکښې له توپان څخه ژوندي وساتل، دی پر زمکه د حیات ژغورونکی شو، ګېل ګمېش غواړي له خپل نیکه څخه د تلپاته ژوندون راز وومومي. د ګېل ګمېش د حماسې او د لوی توپان د اسطورې تر منځ اړیکه په زړه پورې ده، دا د لوی توپان تلپاته اسطوره ده، چي د ګېلګمېش په کیسه کي د روح روان حیثیت لري.

په ادبیاتو کي ګڼو اسطورو خپل هویت او تلپاته وجود د حماسي حضور له برکته ژوندی ساتلی دئ. هر کله چي موږ په ادبیاتو کي د اسطورو پر ځای او ارزښت څېړنه کوو، باید له حماسې سره ئې اړیکه، بلکي هممهاله شتون او ګډون هېر نه کړو.

## اسطوره او تاریخ:

د تاریخ او ادبیاتو ګډه پوله خامخا د تفکر، تخیل او اعتقاد اساطیري دوران ته رسېږي.

"تاریخ په لغت کي د یوې پېښې وخت ټاکني ته وایي او په اصطلاح کي د هغو پېښو، کړنو، واقعاتو سلسله او سرګذشت دئ، چي د وخت په لړ کي ترتیب شوي وي". (فرهنګ معین: ۷۴۴).

خو خبره یوازي همدومره نه ده، تاریخ په هر بشري بحث کي حضور لري، څومره چي پخوانۍ زمانې ته ورګرځو، یو په بل کي د بشري علومو تداخل وینو. که شا ته وګرځو، نو داسي وخت ته رسېږو، چي ادبیات له اسطورو، تاریخ، فلسفې او عقایدو سره ګډېږي، له تاریخي پلوه د دوی سره بېلول ډېر دقت او علمي تخصص غواړي، په لرغونیو متونو کي ادبي ارزښتونه، تاریخي پېښې او د اسطورو حضور سره ګډ دي. تاریخ تل د انسانانو له پاره یو جذاب او په زړه پوري بحث وو، ان هغه واقعیت پلوي او ریالیسټ انسانان، چي پر (نن) او (سبا) ډېر باور لري او غواړي عملي پرمختګ وکړي، هم له تاریخ څخه ځان نه شي خلاصولای، دوی د راتلونکي له پاره له تاریخ څخه زده کړه کوي او غواړي د پرمختګ له پاره یو ځل شا ته هم وګوري.

مایکل استنفورد د خپل کتاب (د تاریخ فلسفه) په پیل کي پوښتنه کوي: "ولي تاریخ زموږ ذهن بوخت ساتلی دئ؟ ولي تاریخ په دومره پراختیا سره څېړل کېږي، تدریسېږي او لوستل کېږي ... د تاریخ لوستل کړای شي زموږ د پلټنې هغه تنده راماته کړي، چي غواړو پوه شو، چي زموږ نیکونو څه ډول ژوند کاوه؟ غواړو په دې وسیله زموږ له تخیل سره مرسته وشي، چي ولسونو، دولتونو او نورو ټولنو څه ډول ژوند کاوه، د دې له پاره چي له موږ سره مرسته وکړي او خپل نننی مسایل درک کړای شو. همدا راز د تاریخ لوستل له موږ سره مرسته کوي، چي په موږ کي د هیوادپالني او د

ګډ ټولیز هویت حس پیاوړی کړي". (درآمدي برفلسفه تاریخ: ۱٦)

په تېرو بحثونو کې مو ویلي وو، چې د ځینو ایتمولوژیستانو (ریښه پېژندونکیو) له نظره په لاتیني ژبو کې د اسطورې او تاریخ ریښه ګډه ده، مانا د عربي اسطوره د یوناني ژبې له Istoria څخه اخیستل شوې او وروسته بیا له همدې ریښې څخه History هم جوړه شوې ده، چې د تاریخ مانا لري.

دا په خپله ښيي، چې تاریخ او اسطوره پېژندنه له ګډې سرچينې څخه راځي.

د اسطوره پېژندني پوهان ټینګار کوي، چې هره اسطوره خامخا په تاریخ کې ریښه لري، اسطوره پېژندنه د ادیانو د تاریخ علم ته ورنږدې ده، بلکې په پخوانیو زمانو کې ېږخې سره یو ګڼل کېږي.

تاریخ او اسطوره هلته سره بېلېږي، چې تاریخ د انساني ټولنو مطالعې ته ځانګړی کېږي، حال دا چې اسطوره تر طبیعت ورپورته ځواکونو ته ځانګړي شوي بحثونه دي. د تاریخ مادي او لیکل شوي سرچینې موږ ته د بشري ټولنو د تحول او تکامل پرمختیایي بهیر د زمان او مکان له قیدونو سره راپېژني، حال دا چې اسطورې د هغو ځواکونو، موجوداتو او پېښو کیسې بیانوي چې د بشر په باورونو او ګروهو کې د دوی تر توان او وس پورته په یوه بله نړۍ کې ژوند کوي. موږ د بشر د تفکر په تاریخ کې د اساطیري تفکر یوه دوره لرو، ادبیات هم په همدې دوره کې له اسطورو او تاریخ سره ورګډېږي. د لرغونیو انسانانو له نظره اسطوره تاریخ دئ، حال دا چې د پرمختللیو انسانانو له نظره اسطوره او تاریخ سره بېل ځیزونه دي، نننی انسانان فکر کوي چې تاریخ د پخوانیو انسانانو د ژوند او پرمختیا مستند روایت دئ، حال دا چې اسطورې د دوی د باورونو محصول دي. اسطورې تر هغو د تاریخ برخه دي، چې پر هغو باورمند او معتقد وګړي د هغوی پر عیني وجود ګروهمن وي، هر مهال چې اسطورې له اعتقاد څخه بېلې شي بیا نو له تاریخ څخه هم خپله لاره بېلوي، خو بېځي له بشري تاریخ څخه نه وزي، ځکه اسطورې د تاریخ پر بهیر اغېزمن ارزښتونه ګڼل کېږي، په تاریخ کې د بشري ټولنو عقاید او باور نه مطالعه کېږي، ځکه د بشري افکارو د تاریخ پوهان فکر کوي، چې پخواني عقاید او باورونه د تاریخ بهیر ټاکي، اسطورې که د تاریخ یوه برخه نه وي، نو د تاریخ د مسیر له ټاکونکیو ارزښتونو څخه ئې خامخا ګڼلای شو. هغه برخه اساطیري روایات چې د ادبیاتو په مرسته تلپاته شوي دي د بشریت د تاریخ سرچینې هم ګڼل کېږي، په همدې ځای کې موږ د تاریخ، اسطورو او ادبیاتو مثلث ته رسېږو.

تاریخ پر مادي اسنادو تکیه کوي، حال دا چې اسطورې د داسي واقعیتونو خاطرې دي، چې په ډېرو لرغونیو زمانو کې ئې د بشریت افکار بوخت ساتلي دي او ورو ورو په ابهام کې ورکې شوي دي، چې د وروستیو انسانانو د تخیل په مرسته ئې بیا حضور وینو، همدلته د تخیل، حقیقت او بیا حضور بهیر د ادبیاتو پښه رانښاسي، اسطورې او تاریخ دواړه له ادبیاتو څخه مرسته غواړي. د فلسفې په

تاریخ کې لولو، چې تر نوي او تجربي تفکر وړاندې انسانانو د خپلو پوښتنو ځواب له اسطورو څخه غوښته، په دې توګه ګورو، چې تاریخ له تجربي تفکر وړاندې اسطورو ته اړ دئ.

"د زرګونو کلونو په اوږدو کې د فلسفي افکارو په اړه په ټوله نړۍ کې اساطیري شرحې وړکړل شوي دي، یوناني فیلسوفانو هڅه کړې دا زبات کړي، چې دا شرحې سمې نه دي.

د لومړنیو فیلسوفانو د فکر څرنګوالی له دې څخه پېژندلای شو، چې وګورو له اسطورو څخه د هغوی تصور څه ډول وو". (دنیاي سوفي: ۳۴).

په لرغونیو زمانو کې چې د تاریخ لیکنې میتودولوژي لا نه وه رامنځته شوې ګڼو لیکوالو چې غوښتل ئې تاریخ ولیکي، نو د لیکنو نیمایي برخه ئې د اسطورو له خوا اشغالېدله، په دې توګه موږ ګورو، چې ډېر څله د تاریخ سېمبولیک روایت د اسطورو په مرسته تر موږ رارسېدلی دئ او دا کار هم د اسطوره یې ادبیاتو په مرسته شوی دئ، یوه بېلګه:

د کربلا پېښه یوه تاریخي پېښه ده، چې د اسلام او عربو په تاریخ کې خپل ځانګړی مکان او زمان لري، خو د دغې پېښې په اړه په سلګونو اسطوره یې روایتونه هم شته، چې د ادبي متونو په مرسته خوندي شوي دي.

ګڼ تاریخي مدنیتونه په هغو باورونو کې ریښه لري، چې له اسطورو څخه رازېږېدلي دي، د هندي مدنیتونو دورې په اسطوره یې پېښو سره ښېلیږي؛ ویدي، بودایي، اوستایي او نور مدنیتونه له اسطوره یي روایتونو څخه ډک دي، د تاریخ په اوږدو کې تاریخي روایات په اسطورو بدل شوي او اسطورو تاریخي مدنیتونه زېږولي، مدنیتونه په حقیقت کې د فکري او عقیدوي دورو په چاپېریال کې جوړېږي. تاریخ دبشري ټولنو د سرګذشت کیسه ده او اسطورې ئې د ایډیالونو، تخیلاتو، افکارو، ارمانونو او غوښتنو تمثیلوونکي دي، څکه خو په لرغونیو مدنیتونو کې تاریخ او اسطورې سره یو ځای وینو، په حقیقت کې د بشر سرګذشت داسې یوې کیسې ته ورته دئ، چې نیم ئې تاریخ او نیم ئې اساطیر دي.

یو ښکاره توپیر، چې وروسته د تاریخ د نویو میتودونو پر بنسټ راڅرګند شو، ګورو چې تاریخ پر ټاکلي (مکان) او (زمان) تکیه کوي، حال دا چې اسطورې له دې قیدونو څخه خلاصې دي.

که څه هم یو شمېر پخوانیو اسطوره پېژندونکیو هڅه کړې ده، چې اسطورو ته تاریخي هویت وروبخښي او ان چې د زمان او مکان په قیدونو کې ئې راولي، موږ په تېره بیا په یونان کې د اسطورو د کورنیو اړیکو په اړه جدي بحثونه لرو، د دوی د شجرو او انسابو په اړه کلک باورونه ول، یو له داسې کسانو څخه یوناني هیسیودوس وو، د میر چا الیاده په نظر:

"هیسیودوس نه یوازې چې اسطورې ثبت او خوندي کړي دي، بلکې د هغوی د تنظیم او تدوین هڅه ئې هم کړې ده، چې له دې لارې څخه ئې دغو اسطوره یې پنځوونو او

تصوراتو ته عقلاني اړخ ورکړی دئ او د دوی د کورنيو اړيکو له پاره ئې استدلال کړی دئ". (چشم اندازهای اسطوره: ۱۵۴).

تاريخ هر ځای، چې د مدنيتونو، افکارو، عقايدو، اسطوره يې دورانونو او پخپله اسطورو د پېژندنې له پاره هڅه کړې ده، نو له ادبياتو څخه ئې مرسته اخيستې ده.

دا ادبي شهکارونه دي، چې د مهابهارت او رامايين په مرسته مو له هندي مدنيتونو، د ايلياد او اوډيسې په مرسته مو له يوناني او د ګېلګمېش په مرسته مو له بابلي هغو سره اشنا کوي، څومره چې له دې ټولو څخه تاريخ ګټه پورته کړې ده، هماغومره مو د اسطورو، ادبياتو او تاريخ د ګډون په ارزښت خبرولای شي.

## اسطوره او فولکلور:

د اسطورو د لېږد، ژوندي پاتېدو او له يوه نسل څخه بل ته د ور رسېدو يو لوښی فولکلور دئ، فولکلور د اسطورو روايت کوي او د ټولنيز ژوند په اړيکو، انګېرنو او ګډو ارزښتونو کې ئې اغيز ژوندی ساتي.

راځئ په پيل کې وګورو چې فولکلور څه شی دئ؟

فوکلور د خلکو يا اولسونو د پوهې او يا د هغوی له پوهې څخه زده کړې ته وايي.

"د فولکلور کلمه له دوو توکونو څخه جوړه ده: (Folk) چې په انګليسي کې (فوک) تلفظ کېږي (خلکو) ته وايي او (Lore) د زده کړې په مانا راځي، پر دې اساس فولکلور يا فوکلور (د خلکو زده کړې) يا اولسي پوهې ته ويل کېږي". (د پښتو د اولسي ادب لارې (ب) مخ).

د فولکلور اصطلاح په انګلستان کې تامس (W. J . Toms) په ۱۸۴۶ ميلادي کې وکاروله او وروسته نورو اروپايي ژبو ته هم ولېږدېدله، فولکلور وروسته د ټولنيزې بشر پېژندن Social Anthropology يوه غوره برخه وګرځېده، چې په دې بحثونو کې مهم ځای اساطيري کيسو، باورونو او خرافاتو درلوده.

اسطورې پخپله د فولکلور نيمايي برخه ګڼل کېږي، مانا ټولې هغه فولکلوريکې کيسې، روايتونه، انګېرنې او نظمونه چې مذهبي ځانګړنې لري له اسطورو سره سر او کار لري. په پښتنو کې ګڼې شفاهي کيسې او روايتونه شته، چې د يوه نامعلوم پير له کراماتو څخه کيسې کوي، يو پير پر روانو اوبو روان دئ او پلی له لوی سيند څخه اوړي، بل ځای پير پر دېواله ناست دئ او دېوال ورلاندې روان دئ، بل ځای يوه پير خپله توره د ښامار په خوله کې اينبې ده او د ښامار له خولې څخه راوتلې اور ئې پرې سوړ کړی دئ، داسې روايتونه چې اعتقادي اړخ لري، خو په افسانوي او خارق العاده بڼه ترسيمېږي، په فولکلوريکو کيسو کې د اسطورو تمثيل کوي.

استاد محمدصديق روهي ليکي:

"د فولکلور د اساساتو په څېړنه کې د اصطلاحاتو تعريف او تحديد هم ضروري بريښي. د مثال په توګه، په انګليسي ژبه کې Legend Myth او Popular Tales يو تر بله ځرګند توپير سره لري (Myth) مذهبي

اړخ لري چي د هغې په واسطه د خلکو او ماوراءالطبیعي مسایل او د معتقداتو او لمانځنو موضوع شرح کېږي. (Legend) حماسي کیسې دي، چي د اتلانو زړه ورتوب، مېړانه او ټولنیز ارزښتونه پکښې تمثیلېږي". (د پښتو د ولسي ادب لاري: هـ مخ).

اسطورې تر هغه مهاله چي په فولکلوري ادبیاتو کي ځای ومومي په درېیو دورو کي تحول مومي:

الف: اسطورې باید له یوازي مذهبي ارزښت څخه فرهنګي ارزښت ته واوړي، مانا په یوه اوږده موده کي یوازي له باورونو څخه خاطرو او خوبونو ته رسوب وکړي، په بله ژبه چي له شعوري ساحې څخه د فرد یا ټولني لاشعور ته لار ومومي او هلته ځان پټ کړای شي.

ب: چي د بېلابېلو نسلونو له خوا ئې له روایت سره هنري سینګار هم ورګډ شي او بیان ئې ادبي ارزښت ومومي.

ج: چي ټولني او بشري ټولګي ئې د ساتلو او راتلونکیو نسلونو ته د لېږد اړتیا احساس کړي او په دې ډول د خلکو د پوهي یوه برخه وګرځي.

ډېر داسې پېښېږي، چي تر دې مهاله اسطورې خپل مذهبي اهمیت له لاسه ورکړی وي او نورنو خلک پرې د یوه اعتقادي اصل په توګه باور نه لري، خو د یوه فرهنګي میراث په توګه ئې خوندي ساتي او په ادبیاتو کي ځای ورکوي.

زموږ په فولکلور کي شیشکي، ښاپیرۍ، ښاماران، پېریان، دېوان، ترابان، یوسترګي بلاوي او خونړۍ پیشوګاني هغه اسطوره يي موجودات دي، چي یو مهال ئې د لرغونیو خلکو په مذهبي باورونو کي خپل ځای درلوده، خو اوس ئې یوازي اسطوره يي حضور په فولکلوریکو کیسو او روایتونو کي راپاته دئ.

په پښتو شفاهي کیسو، نظمونو او فولکلور کي به د اسطورو د حضور په اړه معلومات وروسته ولولئ.

## اسطورې او خرافات:

پخوا هم اشاره ورته وشوه چي اسطورې خرافات نه دي، خو په ادبیاتو کي ډېر ځله د اسطورو او خرافاتو له یوه داسي ګډون سره مخامخېږو، چي بېلول ئې سخت ښکاري.

## خرافات څه دي؟

په (المعجم الوسیط) کي ئې د (الخُرافة) په وړاندې لیکلي: د مني د موسم مېوه چي په مني کي ئې ټولوي، افسانوي او خرافاتي خبرې، خواږه درواغ. (فرهنګ المعجم الوسیط: ۴۸۵).

خو له رواني پلوه، خرافات له یوه ناپېژندلي څیز څخه وېرې او وحشت ته وايي، له داسي یوه مرموز، خیالي او ناپېژندلي څیز څخه غیرمنطقي ډار، چي بنسټ ئې جهل او ناپوهي ده، خو د وېرې مبهمه سرچینه د رواني حساسیت پر بنسټ ځان په داسي یوه باور بدلوي، چي پرې باورمند شخص یا ټولنه ورڅخه دوامداره وېره احساس کړي.

اسطورې له خرافاتو سره ګڼ توپیرونه لري، اسطوره خپل معلوم هویت لري او په

ادبیاتو کې هم له خپل هویتي ځانګړنو، کړنو او ویناوو سره حضور مومي، حال دا چې خرافات یو داسې ټاکلی هویت نه لري، چې ټولو ته په یوه بڼه د منلو وړ وي.

اسطورې د خپلو وجودي دلایلو پر بنسټ په قوت سره هغه ډول زموږ ذهن ته ورننوزي، چې دي، حال دا چې خرافات زموږ د انګېرنو له مخې زېږي.

د بېلګې په توګه تاسو په یوه کار پسې روان یاست، وېره او اندېښنه مو دا ده، چې کار به مو وشي که نه؟ د کار په لومړۍ برخه کې یو تور کارغه مخې ته درځي، ستاسو د کار په لومړي پړاو کې غوټه پېښېږي او وېره مو زیاتېږي، کارغه مو له نظره نحس او بدشاګومه ایسي، وړاندې ځئ، کوم ځای یوه سپینه پیشو ګورئ، ناځاپه مو کار پرمختګ کوي او تاسو دا باور راخپلو ی، چې پیشو نیکشاګومه ده، دا ستاسو خرافاتي تصورات دي، چې کارغه او پیشو ته مو ورلېږدولي دي، حال دا چې اسطورې ستاسو د تصوراتو تابع نه دي، اسطورې پخپله پرېکړه کوي، چې ستاسو په روان کې څه ډول حضور ومومي، ومو وېروي، خوشحاله مو کړي یا هم په تاسو کې د عظمت او ستروالي حس رامنځته کړي.

په ادبیاتو کې کله کله د اسطورو او خرافاتو حضور ګډ شي، چې له دې امله د اسطوره عظمت او ارزښت ته زیان اوړي. له اسطورو سره خرافاتي چلند په حقیقت کې له اسطورو سره دښمني ده.

د هندي باورونو پر بنسټ انسانان، کله چې ومري په بل (معاد) کې ئې روح په بل ژوندي وجود کې ننوز ی او بیا ئې د نوي معاد ژوند پیلېږي، دا د تناسخ باور بلل کېږي. ګڼې هندویي اسطورې په بېلابېلو معادونو کې خپل حضور راڅرګندوي او د دوی د بیا حضور په اړه پرېمانه نظمونه، کیسې او ادبي اثار لیکل شوي یا ویل شوي دي، خو که په دې کیسو کې یو داسي شخص وینو چې تل له دې څخه وېرېږي چې په بل معاد کې د کوم مچ، څرمښکي، یا کوم ناولي شي په جسم کې راژوندی نه شي، دا نو خرافاتي چلند دئ، چې د یوه شخص له وېرې څخه راز ېږیدلی دئ، د دغه شخص خرافاتي چلند له اسطورو سره کومه اړیکه نه لري.

موږ ولیدل، چې په ادبیاتو کې د اسطورو حضور له حماسو، تاریخ، فولکلور او خرافاتو سره نږدې او کله کله ګډ دئ، د دې له پاره چې، تر دې وروسته په بحثونو کې د دوی هر یوه بېل او ځانګړی ځای وپېژندلای شو، د هر یوه د پېژندلو او له اسطورو سره ئې د اړیکو په اړه تر دې لنډ ګڼ بحث وروسته دا دئ د نړۍ د ځینو مشهور ادبي اثارو پېژندنه رااخلو چې د بشریت د تاریخ مشهوري اسطورې او ان اسطوره یې دورې ئې خوندي کړې دي.

## الف: په نړۍ والو ادبیاتو کې اسطورې:

په ادبیاتو کې د اسطورو حضور په درېیو ډلو وېشلای شو:

۱- هغه ادبي اثار چې موخه ئې د اسطورو بیان وي، په داسي اثارو کې د اسطورو

کیسې او روایتونه راغلي وي او د هغوی سرگذشت بیانوي، تر ټولو لرغونی موندل شوی ادبي اثر د گېل گمیش منظومه ده، د دې ترڅنګ راماین او مهابهارت او په یونان کې ایلیاد او اوډیسې ئې نوري بېلگې دي، چې وروسته به پرې بحث وکړو.

۲- ځیني داسې اثار هم شته، چې هدف ئې د اساطیرو د سرگذشت بیان نه وي، خو د اثر په پېښو او حوادثو کې اسطورې حضور مومي او د ادبي اثر پر منځپانگه اغېز کوي، د بېلگې په توگه د مومن خان او شېرینۍ په کیسه کې لولو، چې مومن خان په هندوستان کې له ښامار سره جگړه کوي او هغه وژني. په دې کیسه کې د ښامار حضور ټوله کیسه، چې په اصل کې یوه عشقي حماسه ده، اسطوره يي کوي.

۳- هغه ادبي اثار، چې یوازې پکښې د اساطیرو ذکر راغلی وي. دا د اسطورو تلمیحي ذکر دئ، چې شاعر یا لیکوال غواړي د اسطورې د ذکر په مرسته د خپل کلام منطق پیاوړی کړي، د بېلگې په توگه د خوشال بابا په دې شعر کې د عشقي اسطورو د دوو پښتني او پنجابي جوړو (ادم خان او درخانۍ) او (هیر او رانجها) یادونه وگورئ:

شور او شـــر به د (رانجـــا) په جهان نه و
که د (هېر) صورت پیدا نه وای په شور کې
که خـــبر د (درخــــانۍ) له مخه نه وای
(آدم خان) به ځنې څه غوښتل په کور کې
د خوشال کلیات: ۳۵۱مخ

راځئ د لومړۍ ډلې ادبي اثارو یو څو داسې نړۍ والي بېلگې وپېژنو چې د بشریت د تاریخ د مهمو دورو او مدنیتونو ستر او نامتو اساطیر پکښې پېژندلای شو یا په بله وینا د اساطیرو د سرگذشت نړۍ والي ادبي بېلگې دي.

## گېل گمېش تر ټولو زړه موندل شوې اسوري. بابلي اسطوره:

اوسني عراق او سوریه، پخواني بین النهرین او شام او لرغونی بابل او Mesopotamia یوه لویه مدني حوزه وه، چې که څه هم پولو او حدودو ئې د تاریخ په اوږدو کې توپیر موندلی، خو تر میلاد وړاندې له شپږمې زریزې څخه نیولې بیا تر لومړۍ زریزې پورې د بشري مدنیت یو مهم مرکز گڼل شوی دئ. د گېل گمېش حماسي اسطوره د دغې مدني دورې تر ټولو ستر راپاته لیکل شوی یادگار دئ.

گېل گمېش د یوې ځانگړې جغرافیا، اولس یا تاریخي زمانې محصول نه گڼل کېږي، بلکې فکر کېږي، چې د پینځه زره کلونو په اوږدو کې د سومریانو د اسطوره يي تفکر او هنر پایله ده، د بابلیانو او اشوریانو (اسوریانو) په قلمرو کې رامنځته شوې ده، چې هاغه مهال ئې د اناتولي له واکمنۍ رانیولې تر اوسني فلسطین، عراق، سورېې او کوچنۍ اسیا تر څنډو پورې پراختیا درلوده.

د دې اسطورې د کیسې تر ټولو بشپړ متن هماغه د اسوریانو د پاچا آشوربانې پال د کتابتون په کنډوالو کې موندل شوې د دولسو ډبرلیکونو ټولگه ده، چې هر ډبرلیک شپږ ردیفه لیکنې لرې په هر ډبرلیک کې درې سوه

کربښي ليکل شوي دي، ټوله درې زره و څلورسوه او شپيته کربښې متن دئ، چي د (اوروک) د يوه لرغوني پاچا (ګيل ګمېش) د ژوند کيسه پکښې راغلې ده.

## ګيل ګمېش څوک وو؟

"ګيل ګمېش له تاريخي پلوه د سومر د لومړی لړی پينځم پاچا وو، چي د حضرت نوح (ع) تر توپان وروسته ئې پر سومريانو ۱۲۵ کاله حکومت وکړ. دغه افسانوي پاچا د دوهمي زريزې په پيل کي د خپل ښار پر چارپېر يو لوی دېوال راتاو کړ. ګومان کېږي، چي د ده په اړه يو تاريخي سند هم شته، چي د ده د هغو کړنو ذکر پکښې راغلی، چي د نيپ پور Nippur په مزدک کي ئې تر سره کړي ول. داسي ښکاري، چي ګيل ګمېش تر ميلاد اته ويشت پېړی وړاندي په اوروک کي مهم پاچا وو، چي ترمرګ وروسته ئې په اړه افسانه يي کيسې جوړي شوي دي، هغه ډول چي د اکدي سارګون يا مقدوني سکندر په اړه افساني جوړي شوي وې". (ګيل ګمېش: ۹ مخ).

ګېلګميش د انسان د هغي تلوسې نخښه ده چي تلپاته ژوند ته ئې لري، انسان کله چي د مرګ له حتمي پېښېدا سره مخامخېږي، غواړي له دې پېښې څخه ځان وژغوري. ډېر ځواک، تر نورو پياوړې اراده او په دې لاره کي هڅه هغه څه دي، چي انسان ئې تلپاته ژوند ته د اوزارو په توګه کاروي، خو پايله ترخه ده؛ انسان بايد دا ومني چي مرګ راروان دئ.

هيڅ څه مطلق نه دي، يوازي مرګ مطلق دئ او انسان دا حقيقت بايد د يوې تراژيدی په څېر ومني، همدا د ګېلګمېش برخليک دئ او دا په حقيقت کي د انسان برخليک هم دئ، راځئ وګورو چي ګېلګمېش دې حقيقت ته څنګه ورسېده:

## د ګېلګمېش د کيسې لنډيز:

ګېلګمېش د اورک (Uruk) د ښار يو ځواکمن او مستبد پاچا دئ، دی دوې برخي اسماني او يوه برخه ځمکنی موجود دئ، ځکه خو د چا زور پرې بر نه دئ، ګېلګمېش خوري، څښي او د هر چا پر لور يا ښځه ئې چي لاس بر شو راخپلوي ئې. حکم ئې کړی دئ، چي هره ناوې به لومړی شپه د ده پر پالنګ تېروي او بيا به مېړه ته ورځي، د ده تېري او ناروا دې بريد ته رسېږي، چي د اوروک خلک له خدای څخه وغواړي، چي يو بل ځواکمن انسان هست کړي، چي له ګېلګمېش سره زور وآزمايي. خدای د انکيدو (Enkidu) په نامه يو وحشي او زورور انسان پيدا کوي، چي په ځنګلونو او دښتو کي له ځناورو سره ژوند کوي، د هغوی په څېر خوراک او څښاک کوي او خورا غښتلی دئ، انکيدو د يوه ښکاري دامونه له ځمکې راباسي او ښکاري چي ښار ته راځي د يوه معبد راهبه، چي د ښادی راهبه نومېږي له ځانه سره دښتي ته بيايي او هلته انکيدو ورښيي، راهبه ځان بربنډوي او انکيدو ورسره شپږ ورځي او اووه شپې مينه کوي، دا پېښه د دې لامل ګرځي، چي انکيدو خپل انسانيت وپېژني او ښار ته ولاړ شي، هلته له

ګېلګمېش سره مخامخ کېږي او یو له بل سره غېږ ې نیسي، که څه هم ګېلګمېش بریالی کېږي او انکیدو پر ځمکه ولي، خو د هغه له جرئت او ځواک څخه اغېز مني او دواړه سره ملګري کېږي، د دوی دواړو ملګرتیا پر ګېلګمېش اغېز ښندي او ورو ورو غواړي د خلکو په ګټه یو کار وکړي، دواړه انډیوالان پرېکړه کوي، چې د هو مبه به Humbaba جګړې ته ولاړ شي، هومبه به هغه قهرجن دېو دئ، چې د سدر د ونو په ځنګله کي اوسېږي او خلک ورڅخه په عذاب دي ګېلګمېش او انکیدو د دغه دېو جګړې ته ملا تړي، د اوروک مشران او سپین ږیري ورته نصیحتونه کوي او ورسره خدای په اماني کوي او ګېلګمېش له خپلي مور (نین سون) څخه دعا غواړي، مور ئې د دعا تر ځنګ له انکیدو څخه هیله کوي، چې د هغې د زوی ملګرتیا وکړي او پام پرې وساتي. همدا چې ځنګله ته نږدې کېږي ګېلګمېش پینځه خوبونه ویني، چې د انکیدو له خوا دبریا زیری ګڼل کېږي، ځنګله ته په ورننوتلو سره که څه هم انکیدو د وېرې احساس کوي، خو ګېلګمېش ئې زړه ورغتوي او دواړ ه جګړې ته ورځي او هومبه به وژني د سدر وني پرې کوي او خپل ښار ته ئې راوړي. ایشتر چې یوه اسماني مېرمن ده پر زړور او اتل ګېلګمېش باندې زړه بایلي او ورڅخه غوښتنه کوي، چې ورسره مینه وکړي، خو ګېلګمېش د ایشتر مینه نه مني، ایشتر چې نه شي کړای د ګېلګمېش معشوقه شي د کسات له پاره یو غښتلی اسماني غویی اوروک ته ورلېږي، چې هلته ورانی پېښ کړي، دواړه ملګري

ګېلګمېش او انکیدو په ګډه له غوایي سره جنګېږي او په یوه ګواښمنه جګړه کي یو د بل په مرسته اسماني غویی وژني. د اسماني غویي په وژلو سره ارباب الانواع غوسه کېږي او انکیدو د خپل مرګ خوب ویني. ارباب الانواع د هومبه به د وژلو، د سدر ونو د وهلو او د اسماني غویي د وژلو په کسات کي انکیدو په مرګ محکوموي، ګېلګمېش د خپل ملګري مړینه نه شي منلای، خو تقدیر همداسي دئ، چې انکیدو په یوه ځورونکې ناروغۍ تر اخته کېدو وروسته مري، ګېلګمېش د خپل دوست په مرګ ډېري سورې او غلبلې کوي، هیچا ته اجازه نه ورکوي، چې ملګری ئې خښ کړي تر دې چې د انکیدو له پزې څخه چینجي راوزي او بالاخره ګېلګمېش اجازه ورکوي، چې د ده تر پړې (تندیس) جوړولو وروسته هغه خاورو ته وسپاري.

د ګېلګمېش تراژیدي له همدې ځایه پیلېږي، دی اوس باورمند شوی، چې (مرګ) حتمي دئ او هر څومره زورور او پیاوړی انسان هم چې وي، بالاخره مري. د انکېدو مرګ ګېلګمېش ناکراره کړی دئ، یوازي د دې له پاره نه چې ملګری ئې مړ شوی، بلکي د دې له پاره، چې د ده ژوند هم تلپاته نه دئ.

ګېلګمېش د تلپاته ژوند د راز موندني له پاره خپل سفر پیلوي، هغه غواړي خپل نیکه اورشه نبي (اوته نه پېښ تم) پیدا کړي، هغه یوازینی انسان دئ، چې تلپاته ژوند ته ئې لاس رسېدلی دئ، اورشه نبي بابلي نوح (حضرت نوح علیه السلام) ګڼل شوی دئ، ځکه په ګېلګمېش افسانه کي دی تر ستر

توپان وروسته ژوندی پاته دئ او نه یوازې دی، بلکې د ده د ستري ېړۍ له برکته یو شمېر انسانان او جوړې جوړې ژوي، چې ده ژغورلي ول، هم ژوندي پاته دي او تر ستر توپان وروسته ئې پر ځمکه نوی ژوند پیل کړی دی. د (اوته نه پېش تم) د همدې کار په برکت هغه ته تلپاته ژوند ورکړل شوی دئ، ګېلګمېش د بلې نړۍ سفر پیلوي، چې هلته خپل نیکه او ته نه پېش تم وموموي او پوښتنه ورڅخه وکړي، چې د تلپاته ژوند چینه چېرته ده او دی باید څه وکړي، چې له مرګ څخه وژغورل شي، د دې اوږد او زاره چاودې سفر په لړ کې ډېر څه ویني، ګڼو کسانو سره چې مخامخېږي، ټول ورته وایي، چې مرګ حتمي دئ او ځان نه شي ترې ژغورلای، خو ګېلګمېش لا پر مخ ځي. هغو دوو غرونو ته رسېږي، چې لمر ورڅخه راخیژي، د لمر د دغې لارې ساتونکي دوه ستر لړمان دي، چې ګېلګمېش ته لاره ورښیي، مساپر له پراخو تیارو او تورتمونو څخه تېرېږي، هاخوا یو ښکلی باغ مومي، چې پاڼې ئې لاجورد او مېوې ئې عقیق دي. هلته (سي دوري سابیت) ویني له هغې څخه د کښتۍ وان اوته نه پېش تم د ځای پوښتنه کوي، هغه ئې ځای ورښیي او بالاخره ګېلګمېش خپل نیکه بیا مومي، او ته نه پیش تم ورڅخه پوښتنه کوي، چې ولې تر دې ځایه راغلی دئ؟ ګېل ګمېش ورته کیسه کوي او هیله ورڅخه کوي، چې د تلپاته ژوندون راز وروښیي، اوته نه پېش تم ورته وایي:

"مرګ د انسان حتمي برخلیک دئ!"

خو ګېلګمېش نه قانع کېږي، له او ته نه پېش تم څخه پوښتنه کوي، چې ده نو څنګه تلپاته ژوند موندلی دئ؟ او نیکه ئې په خوب کې د ستر توپان کیسه ورته کوي، چې څنګه د خدای په امر ئې ېړۍ جوړه کړه او بیائې له هر ژوندي موجود څخه یوه یوه جوړه پکښې وژغورل او د دې هڅې په پایله کې لوی خدای ورته تلپاته ژوند وباخښه.

له اوږدو خبرو او ټینګار وروسته ګېلګمېش بریالی کېږي، چې له او ته نه پېش تم څخه د تلپاته ژوند د بوټي پته او ځای ځایګی وپوښتي، او ځان ور وروسوي. ګېلګمېش همدا چې د تلپاته ژوند بوټی مومي، غواړي مخکې تر دې چې راوایې خلې ځان ومینځي او په پاک بدن هغه ته ګوتې وروړي... پوهېږئ، چې څه پېښېږي؟ ناڅاپه یو مار راځي او دغه بوټی خوري له خوړلو سره سم پوستکی غورځوي او ځوانېږي. بېچاره ګېلګمېش تش لاس او ناهیلی بیرته خپل ښار (اوروک) ته راستنېږي، چې خپلو خلکو ته دا تریخ پیغام راورسوي، چې: "مرګ د انسان حتمي برخلیک دئ!"

په دوولسمه لوحه کې چې د یو شمېر څېړونکیو له نظره وروسته په کیسې پسې ورپیوند شوې ده، ګېلګمېش تر خپل اوږده سفر وروسته یو بل سفر هم پیلوي، دی د مړیو دنیا ته ځي او غواړي خپل ملګری انکیدو وګوري، یا ئې له ځانه سره بېرته د ژوندیو دنیا ته راولي، د ده دا سفر هم له پېښو او ویرونکیو شېبو څخه ډک دئ. ګېلګمېش له خدای

ځخه مرسته غواړي او له خپل ملګري انکیدو سره په خورا بدو حالاتو کي مخ کېږي، انکېدو د هغې دنیا د خورا ځوروونکیو او سختو حالاتو خبر ورکوي، په داسي یوه ګونګه او مبهمه ژبه ورسره خبري کوي، چي له مرګ ځخه د ګېلګمېش وېره نوره هم زیاتوي او په دې توګه له ډېرو حقایقو خبر ګېلګمېش ځان د مرګ سفر ته چمتو کوي.

د ګېلګمېش اسطوره د بشریت تر ټولو زړه موندل شوې اسطوره ده، چي په خورا لرغوني زمانه کي د انسان د فلسفي فکر ځرګندونه کوي. موږ وینو چي انسان له پخوا زمانو ځخه د مرګ و ژوند په اړه ژوري اندېښني درلودلي، د تلپاته یا لږ تر لږه اوږده ژوند له پاره دانسانانو تلوسه لرغوني ده او اوس هم په هماغه بڼه لا ژوندۍ ده، یوازي ئې له خُرافاتي، افسانوي، ماوراء الطبیعي او اساطیري بڼې ځخه یو ځه تجربي، مادي او علمي بڼې ته بدلون موندلی دئ، خو لا هم انسانان فکر کوي، چي د ژوند یوه پټه چینه کوم ځای شته، چي سرګردانه بشریت به تر پایه پسي ګرځي، خو هیڅکله به ئې و نه مومي.

د ګېلګمېش د اسطورې په شننه کي تاسو موندلای شئ، چي اسطوره له واقعیتونو، تاریخ، عقایدو او باورونو سره ځه ډول اړیکي لري. ګېلګمېش د ستر توپان زمانې ته نږدې اوسېده، نوموړی په یوه مدني دوره پوري اړه لري، نسلونو نسلونو د ده د کیسې د ژوندۍ ساتلو هڅه کړې ده، تر دې چي ان زموږ زمانې ته ئې هم رارسولي ده، د اوږدو پېړیو په اوږدو کي خلکو د ده د کیسې له تلوسو، وېرو او مېړانو سره ژوند کړی دئ. د یوې رېښتیني اسطورې جدي حضور په بشري تاریخ، تفکر او باورونو کي همدومره دئ، چي دا دئ تر ځلورو زرو کلونو پوري هم خپل اغېز ساتي.

د ګېلګمېش منظومه د اسطوره یي ارزښت تر ځنګ پربمانه ادبي ځانګړني هم لري، په دې منظومه کي تشبیهات، استعارې، شاعرانه انځورونه، حماسي ژبه، په زړه پوري سیمبولونه خورا د پام وړ دي، چي د دغې لرغوني موندل شوي منظومې ادبي ارزښت راښیي.

راځئ د دغې تاریخي اسطورې له متن ځخه د یوې برخې ازاده ژباړه په پښتو ولولو او د ګېلګمېش د اسطورې بحث پرې پای ته ورسوو:

"... اوته نه پېش تم، هغه ته، ګېل ګمېش ته وویل:

اننګي دي ولې سپېره، څېره دي داسې غمجنه ده؟

ځان دي ولي رنځور او بڼه دي مړاوې ده؟

اندېښنو دې ولې په ځان کي ځالې کړې دي

او مخ دي هغه چاته ورته دئ، چي له لیري

لارو ځخه راغلی وي او مزلونه ئې وهلي وي؟

څېره دي ولي نم او لمرسیزلې ده؟

ولې داسې سرګردانه او تش لاس هري خوا ته ګرځې؟

ګېلګمېش هغه ته، او ته نه پېش تم ته، وویل:

اې او ته نه پېش تمه! څنګه به مي اننګي سپېره او څېره داسي غمجنه نه وي؟

ولي به مي ځان رنځور او بڼه مړاوې نه وي؟

څنګه به اند ېښنو راته په ځان کي ځالي نه وي
کړي؟
او ولي به مي مخ هغه چا ته ورته نه وي، چي له
ليري لارو څخه راغلی او مزلونه ئې وهلي دي؟
څېره به مي خود نم او لمر سيزلې وي او داسي
به خود سرګردانه او تش لاس هري خوا ته
ګرځم.
چي زما يار، هغه پياوړی سرګردانه نر اوښ، د
بيديا يابو، د دښتې پړانګ انکېدو، هغه
پياوړی سرګردانه نر اوښ، دبيديا يابو، د
دښتي پړانګ
هغه چي له ما سره يو لاس او يو ځای غره ته
وخوت
او سره يو ځای مو اسماني غويی، چي لاندي
راښکته شوی وو، وواژه
هوم ببه مو، چي د سدر په بيخلن ځنګله کي
اوسېده په وينو ولمباوه
او د غرونو په لارو ګودرو کي مو پړ ېمانه زمريان
ووژل.
زما يار، چي پر ما ګران وو، هغه چي په ټولو
ازموينو کي راسره ملګری وو
انکيدو، چي ما ورسره مينه درلوده،
په هر ازمون کي راسره يو ځای وو
هو، همهغه انکېدو، له هغه ګډ تقدير سره
مخامخ شو، چي د ادميانو ځانګړی برخليک
دئ.
ما شپږ ورځي او اووه شپې پرې وژړل
ما نه پرېښوده چي مړی ئې خښ کړي
تر دې چي له پزې څخه ئې چينجي راولويدل
هغه وخت نو وويريدم،

وېري مي په ځان کي ځاله وکړه او دا دئ د
(مرګ) له وېري سره لاس و ګريوان يم،
وېرې په دښتو سر کړی يم، د مرګ وېري.
زما د ملګري کيسه پر ما درنه ده
ليري مزلونه مي وهلي او په تشو لارو کي
سرګردانه يم.
څه چي پر انکېدو راغلل، زه ئې خپه کړی يم،
وارخطا او ترور يم.
پر ليري لارو سر يم، په دښتو کي سرګردانه
نو څنګه غلی شم، خوله وترم او کرار کښېنم؟
چي زما ملګری، چي پر ما ډېر ګران وو، په
خاور ننوتلی دئ.
زما ملګری، انکېدو، چي ډېر راباندي ګران
وو، له خاورو سره خاوري شوی دئ.
ايا زه به هم همداسي پر پوځم؟
وبه مرم، چي بيا هيڅکله، په هيڅ زمانه کي
به بيا راهسک نه شم.
نور به پاڅېدل نه وي؟
ګېلګمېش بيا، هغه ته، او ته نه پېښ تم ته
وويل:
هغه وخت مي هوډ وکړ، له ځانه سره مي
وويل: اوته نه پېښ تم ته ورځم!
هاغه چي (ليري) بلل شوی دئ، هغه به
وګورم.
ما ډېر واټنونه وهلي دي
پر ډېرو ځمکو او ښتی يم،
له هري خوا تللی او راغلی يم
پر غرونو اوښتی، پر سختو ستېغونو ختلی يم
پر سترو سمندرونو مي مزل کړی او له
وېروونکيو سيندونو څخه تېر شوی يم.

نور مي پر مخ د خوب او هوسايني سيورى نه پرېوزي
ويښتيا له پښو غورځولى يم
په پلو او غړيو مي لړزه ننوتلې ده
تر هغو چې د سي دوري سابيت کور ته رارسېدم، هاغه چې په سيند بار کي اوسي.
د تن جامې مي ورستې شوي وې
اېره او بگوه، زمرى و پړانگ و دښتي غوايان ،
هوسۍ او نور وحشي څناور مي پريمانه ووژل
غوښې مي وخوړې او پوستکي مي واغوستل
.....
او ته نه پېش تم، هغه ته، گېل گمېش ته وويل: گېلگمېشه! ولې اندېښنه کوې؟
ته چې نيم اسماني او نيم ځمکنى پيدا شوى يې! پلار و مور دي درياد کړه، هغوى پخپله څنگه ول، هېر دي شول؟
.....
ژوند څکه دوام لري، چې مرگ وېروونکى دئ
ټول عمر کورونه جوړوو
ټول عمر ژمني کوو، وعدې ورکوو، بيا پرې وډرېږو
تل ورونه د ميراث په وېش لگيا وي
همېشه يو ځای چې تاوتريخوالى او گړ بړ پېښېږي
نو يوه لويه څپه سر راپورته کوي او هر څه په سېلاو لاهو کېږي.
هغه مخ چې لمر ته گوري، تل نه پايي
ويده او مړى يو بل ته ورته دي
له مرگ څخه انځور نه شو جوړولاى
بنيادم، له بنيادمه پرته بل څه نه شي زېږولاى.....

په اسمانونو کي د مرگ او ژوند پرېکړه کېږي
خو د مرگ وخت هيچا ته نه ورښيي.
يوازي د عمر د ورځو شمېره ورته ليکي او بس". (گېلگمېش: ۱۵۰ – ۱۵۴)
نور بيا...

****

ټولوونکى: حاجي محمد رزمي

## گل خبري

- هر ليکوال او هنر مند پخپلو اثرونو کي خپله سوانح ليکي.
- ښځه چې خاموشه وي دوه برابره ښه ايسي.
- په کنفرانس کي هيڅکله ستره مفکوره نه زېږي خو هلته ډېري احمقانه مفکورې مري.
- د جگړې پای يوه سپينه شنخته ده چې د مړي نوم پر ليکل سوى وي.
- زما له پاره اميدونه د ساعت تېري ښه وسيله ده.
- داسي ذهنيت ولره چې د ټولو شيانو په وړاندي خلاص وي خو په هيڅ شي پوري تړلى نه وي.
- هغه څه چې بايد موږ ځني وبېرېږو هغه پخپله بېره ده.
- هيله لرم چې زما کور تل زما د ملگرو له پاره کوچني وي.
- خوښي د دې له پاره ده چې بايد د نورو سره شريکه سي.
- نن پخپل ټول وس سره ښه ژوند وکړه ځکه چې نن ستا د پاته ژوند لومړۍ ورځ ده.



لیکوال : سردارولي پښتون زوی

# کوږک غر او د هغه لمني



د کوږک غر د کسې د مشهور غره هغه جنوبي ښاخ دئ، چې تر سیوی پورې رسېږي، دا تاریخي غر د پښتونخوا یو له داسې مهمو غرو څخه دئ چې د پښتنو په ژوند کې ډېر ځایه یادېږي. دا غر د افغانستان د جنوب کندهار ولایت د بولدک اولسوالۍ لمر خاته ته د یوه دېوال په ډول شمال ختیځ او جنوب ته پروت دئ چې اوږدوالی ئې شاوخوا ۲۵ میله دئ. دا غر که څه هم اوس وچ او بې مېوې دئ خو سیمې ته د انګرېزانو تر راتګ مخکې ئې د پیستې او شنې ځنګلي درختې درلودلې چې د اورګاډې د پټلۍ د غځولو له پاره ټولې وکښل سوې او یا وسوځل سوې. د دې غره سر له شاه کوتل څخه پیلېږي او پر سرلټ غره چې د پښین ناوه او ښوراوک سره بېلوي، ختمېږي. علامه رشاد بابا (رح) د ملا سلام اشېزي په سمینار کې وایي:

"... د پښین تاریخي دور، یا ذکر ډېر وړاندیني او قدیم دئ. په هندي ادب کې یو کتاب دئ، چې تقریباً یو نیم زر کاله مخکې لیکل سوی دئ، بلکې تر هغه به لا هم د مخه وي هلته ئې د پښین کلیمه د پښینا په شکل باندې، چې اخر ئې متحرک دئ، راوړې ده او په دې کتاب کې ئې دا خبره هم زیاته کړې ده، چې د پښین لویدیځ ته یو غر دئ، چې هغه ته پښینا پروته وایي، یا پښینا پربته وایي. پربت، یا پروت کلیمه په سانسکریت کې د غره مانا لري. پخوا تر دې چې پروت، یا پربت کلیمه په سانسکریت کې نه وه رواج سوې، نو د دغه مفهوم له پاره ئې ګیري ویل، چې د پښتو له ګر و غر سره ارتباط لري، نندولال دې په خپل کتاب (ډیوګرافیکل ډکشنري اف انشنټ اینډ

میډیول انډیا؟) دغه غر چي د ښبینا پروته په نامه یادیږي، په دغه هندي کتاب کي ذکر کړی دئ چي دا غر اوس هم د خواجه عمران غره په نامه یادیږي او د ښبین شرق ته واقع دی" (۲۰۰۴ع-کابل افغانستان)

د کوږک غره شمال ختیځو لمنو ته په پرلپسي ډول منځکی، اوجړوبې، تاش رباط، اڅکزی توبه، جلګه[1] ماکو کځ، تبینه، ښبنه (د ښبني لار)، بوغره[2] د ژړي بند (د ژړي ګېټ)، عبدالله خان کلا، چینه، بابک صاحب[3]، ګلستان او پای ئې رنګ ته رسېږي.

د کوږک د لمنو اوسېدونکي تر ډېره اڅکزي دي چي خورا زحمتکښ کام دئ، زموږ پښت پوهان اڅکزي د پښتنو د سړبن په ګروپ کي ګڼي چي د دراني پښتنو د ځیرک په څانګه کي راځي. اڅکزي په لومړي سر کي په دوو لویو څانګو وېشل کېږي چي ګوجن (ګل جان) او بادین (بهاوالدین) نومېږي. د ګوجین په څانګه کي: حمیدزي، ملیزي، اشېزي (څول)، عثمانزي، علیزي، نصرتزي، غنیزي، خدرچیزي، صالحزي، متکزي، ادوزي، ملازي، سلطانزي، شکرزي... همدا راز د بادین ښاخ هم پر لاندي څانګو وېشل سوی دئ: کاکوزي، غبیزي، شمشوزي، پیرعلیزي، پانیزي...

مشهور انګرېز مؤرخ مونټ ستیوارټ الفنسټن په خپل نامتو اثر (د کابل سلطنت بیان) کي لیکي: "اڅکزي اکثره کروندګر او پوونده خلګ دي که څه هم یوه اندازه مځکي لري، خو د خپل ژوند له پاره پر مځکو تکیه نه کوي. د دوی څاروي د خو اجه عمران (کوږک) په غرونو او د توبې په لوړه سیمه کي سا تل کېږي، په داسي حال کي چي او ښان ئې د ښوراوک په شګلنه مځکه کي پوول کېږي. اڅکزي پر داسي مځکه پراته دي چي یا خو لغړ غرونه دي او یا سپېره ډاګونه او یا هم خالص شګي دي. د دوی د کرهڼي مځکي خورا لږ دي".

د کوږک غره د اوسېدونکو پخواني حالت داسي وو چي ډېرو ئې خپلي مځکي کرلې، خو په دوی (اڅکزو) کي علیزو او حمیدزو تر ډېره د افغانستان سره تجارت کاوه، شمکزو بیا په کلای عبدالله خان کي د لرګیو په خرڅولو ژوند تېراوه، عشېزو او کاکوزو بیا د ښبین په ناوه کي د ترینانو بزګري کول[4].

د کوږک د خلګو اخلاص او رښتنولی، زموږ غښتلی او ښاغلی پلار احمد شاه بابا(رح) هم اړ کړی وو چي د مرګ په وخت کي کوږک ته ولاړ سي او هورې و خپل رب ته روح وسپاری[5].

انګرېزانو ته له هغه وروسته د کوږک د نیولو اشتها ور ولاړه سوه چي په ۱۸۷۸ع کي د افغانستان په جنګ کي مېجر سنډېمن او جنرال استوارټ تر کوږک پوري ملګري ولاړل. کله چي انګرېز په ۱۸۷۹ع کال کي د امیر شېرعلي خان د زوی یعقوب خان سره د کندمک تړون لاسلیک کړ، په دې لاسلیک سره کوټه، سیوی، ښبین، کورمه، مېچنی، خیبر، کوږک غر او چمن رسماً د هندوستان په خاوره پوري تړلي اعلان او له خپل پلرني هیواد افغانستان څخه په انګرېزي چاره ببل او پر پاته افغانستان ئې د انګرېز برلاستیا

ومنل!!

په دې توګه انګرېزان و کوړک ته ورسېدل، چمن او شاوخوا سيمې ئې په نظامي ډول سنبال او په لسو کلو کې ئې دننه د اورګاډي لاين تر چمن پوري ورساوه. د کوړک ستراتيژيکوالی د ډيورنډ د منحوس تړون له پنځمې مادې څخه ښه مالوموللای سئ:

ډيورنډ تړون- ۱۸۹۳ع ۱۲ نومبر، پنځمه ماده:

"د افغانستان د امير له خوا به د شېرو اوبو (چينې) لاندې سيمې د برتانيا پر حکومت پلورلي بلل کېږي، په دې سيمه کې به د پولي کرښه داسې کشېږی چې د کوړک د غره پر سر را پيل سي چې شاکوتل ته نژدې پروت دئ، د پولي کرښه به د مرغې او چمن په ها خوا د بريتانيا او افغانستان پوله د لښکر ډند په سيمه کې ټاکل کېږي، کرښه به د اورګاډي د ستېشن په ها خوا د بولدک له غونډۍ څخه تېرېږي او له دغه ځای څخه د جنوب خوا ته به داسې کږېږي چې بيرته د کوړک د غرونو سلسلې ته ورننوزي. د ګوانښې سيمه به بريتانيا ته پاتېږي او د ښوراوک او ګوانښې تر مابينځ سړک به په افغانستان کې پاته سي. د بريتانيې حکومت ژمنه کوي چې له کرښې ها خوا به په نيم ميل واټن کې مداخله نه کوي(۶)".

دې پېښې ټول پښتون سره ولړزاوه، د تړون د لاسليکېدو په لومړيو کلونو کې د پښتنو په سيمو کې زيات پاڅونونه وسول چې لومړی د انګرېز ورپسې د افغان دولت په زور سخت وځپل سول، په پايله کې ئې زياتو پښتنو مړونو خپل ژوند له لاسه ورکړ. انګرېز تر ډېره پوري د کوړک پښتانه تر ځار لاندې نيولي ول، ځکه مخکني پاڅونونه همدې د کوړک خلګو کړي ول.

عبدالرحمن خان چې انګرېز تر وهلو په ځغلولو سترې کړی وو، دا تړون پر خپل سر بې له دې چې د لويې جرګې مشوره واخلي، لاسليک کړ او په دې ډول ئې له افغان اولس سره نه جبرانېدونکې خيانت وکړ. امير ته د لاسليک کولو په بدل کې له کاله د ۱۲ لکو هندۍ روپيو په بغل کې د ۱۸۸۳ع څخه تر ۱۸۹۵ع پوری ۸۰ سپک توپونه، ۱۷۳۴۰ د توپ ګولۍ، ۳۳۳۰۲ توپکه، ۳۲۰۰ کارابينه (د هغه وخت اعلی توپک) ۲۱ ميليونه د توپکو ګولۍ ورکول سوې.

دا تړون اساساً له ۱۸۹۳ع څخه تر ۱۹۹۳ ع پوري د ۱۰۰ کالو له پاره لاسليک سوی وو (دا خبره مشهوره ده، خو ما په کوم باوري سند کې نه ده ليدلې) خو کله چې په کال ۱۹۴۷ع کې اوسنی پاکستان جوړ سو، د ډيورنډ کرښه د ملګرو ملتونو له خوا د افغانستان او پاکستان تر مابينځ په رسمي پوله وپېژندل سوه. په عادي حالت کې بايد د افغانستان حکومت په ۱۹۹۳ ع کې د دې سيمو لاس ته راوړلو غوښتنه (دعوه) کړې وای. خو لکه څرنګه چې افغانستان په کورنيو جګړو کې ډوب وو د افغانستان سياستوالو دې مهم ټکي ته پام و نه کړ. مالومه نه ده چې تر دې تمې به تر کله لا ويني بهېږي؟!

کله چې انګرېز د کوړک غر سوری کړ؛ غوښتل ئې د اورګاډي پټلۍ د ګلستان او

عنایت الله کاریز تر مابینځ تېر او چمن ته ورسوي، خو د ګلستان خانانو د دې لارې مخنیوی وکړ، انګرېزان مجبوره سول چې پټلۍ د عبدالله خان پر خوا ور وغځوي، په ګلستان کې د لاین د تېرېدو اثار اوس هم سته چې خلګ ئې د یادګار په ډول ګوري، تر ۱۸۹۵ع پوري لا د کوږک خلګ څو واره له انګرېز سره ومښتل، چې په هر جنګ کې به انګرېزانو ته تر ډېره تاوانونه هم اوښتل ځکه چې د ټلیګراف ټول سیمونه په کوږک کې تېر سوي ول او په جنګ کې به ځایي خلګو د کسات له امله ټول سیمونه پرې کول، خو د ۱۸۹۵ع کال په اخیر کې چې انګرېز د اربکیو (لېویزو) نظام جوړ کړ، ځایي مشرانو ته ئې معاشونه، لقبونه، په لېوزو کې لوړې چوکۍ، ښې تنخاوې او داسې نور امتیازات ورکړل. په دې سره ئې د اڅکزو هره ښېنه جلا – جلا راکش کړه او هغه چې له انګرېز سره ئې مخالفت کاوه په همدې خپلو ئې له ښېنو اچول، وروسته ئې په ۱۸۹۸ع کې پر اڅکزو د ځمکې مالیه هم وټاکله، چې مخکې ئې انګرېز تصور لا هم نه سوای کولای.

په دې ډول انګرېز وکولای سوای چې د سیمې تر زړه د رېل او ټلیګراف اوسپیني وباسي، له دې وروسته انګرېز د کوږک غره پر څوکو په لسهاوو د پنډو دېوالو ګردی-ګردی مورچې جوړې کړې تر څو د شاتګ په وخت کې کار ځني واخلي، چې شاوخوا درې فوټه پلن او اوسپنیز سیمټي دېوالونه ئې دي، له دې مورچو څخه شاوخوا شل میله افغانستان د ورا ځایه مالومېږي، افغانستان ته د روسانو د راتګ (۱۹۷۹ -۱۹۸۹ع ) پر مهال پاکستاني فوځیانو څو میاشتې دا مورچې سنبال کړې، خو وروسته چې کله د غره په سر کې رادار او نوري تخنیکي الې ولګول سوې، نو مورچې هم له عسکرو څخه خالي کړل سوې. د کوږک غره څوکې د سمندر له کچې څخه (۹۰۰۰) فوټه لوړوالی لري.

د خپلواکۍ په جګړه (افغان انګلیس دریم جنګ ۱۹۱۹ع) کې چې کله انګلیس د چمن له خوا پر بولدک فشار راوړ، په کندهار کې لویناب خوشدل خان والي، او سردار عبدالقدوس خان د کندهار د محاذ مشر وو، ځنګه چې قدوس خان له کابل څخه لا نه وو رارسېدلی انګرېز پر بولدک کلا (په دې وخت کې قلعه جدید بلل کېده) برید وکړ، د بولدک په کلا کې ۳۰۰ عسکرو د محمدیوسف خان په مشرتوب د بولدک ساتنه کوله، خو د کندهار څخه خوشدل خان قوه ور و نه لېږله، ډېری افغان عسکر مړه او ژخمیان سول، انګرېزان په داسې حالت کې د بولدک کلا ته ننوتل چې محمدیوسف خان د کوما په حالت کې وو، وروسته امان الله خان غوښتل خوشدل خان اعدام کړي، خو دا ئې ماما وو او مور ئې د هغه د خلاصولو لار برابره کړه.

خو کله چې دغه حال کندهار ته ورسېد د بېلابېلو مشرانو[7] په مشرتوب اولسي لښکر له سپینو بیرغو سره مخ پر بولدک روان سو، یو ګړی وروسته بولدک په افغاني مړونو ډک سو آن تر ډېب کلا او انځرګي پوري افغانان د اماده باش په حالت کې د قوماندې په انتظار اوسېدل،

په ۱۹۱۹ع کي د انګرېزانو د لښکر مشر پر کوړک باندي په دوربين کي د افغانانو د راتګ او جوش و خروش ننداره کوله چي له سپينو بيرغونو سره په ډلو-ډلو بولدک ته ورسېدل، دلته وو چي د انګرېزانو د جنګ قومندان وارخطا سو چي دا څه حال دئ؟ هغه وو چي بې له ځنډه ئې د هند وايسراى (والي) ته د وضعي په باره کي ټلګراف تېر کړ. د هند وايسرا هم فوراً و لندن ته خبر ورکړ. په دې وخت کي د انګرېزانو صدراعظم ګليډ ستون وو هغه چي دا خبر واورېد سملاسي ئې د هند وايسرا ته امر ورکړ چي افغانانو موږ ته دوه واره ماته راکړې ده نو په دې کي هم زموږ ناکامي له ورايه مالومه ده، نو ته دستي متارکه اعلان کړه، هغه وو چي متارکه اعلان سوه، او دواړه لښکره د آماده باش په حال کي پاته سول(۸).

## کوړک تونل:

کوړک (کوړ ووړ) انګرېزانو د دوی د لهجې سره سم دا تونل په (خوجک) سره ياد کړی، د کوړک د تونل کار په ۱۸۸۸ع کال د اپريل په ۱۴ پېل سو چي د درو کالو پرله پسې کار او زحمت په نتيجه کي په ۱۸۹۱ع کال کي د جنرال سر ټامسن په څارنه پوره او په مارچ مياشت کي د هند د سپه سالار له خوا په خورا جم وجوش پرانيستل سو، چي په هغه وخت کي ئې لګښت ۸۲،۶ ميليونه هندی روپۍ وو. د دې کار د ماموريت له پاره له انګلستان، هند او بنګال څخه ايماندار، خپلواک او پوه انجيران راوغوښتل سول، چي په ځنګ کي ئې نورو قومونو هم کار کاوه لکه په هند کي ښلابښل زندانيان، هزاره، مغول، فارسي ژبي، پنجابيان، سيکان، مکرانيان، بنګاليان او کم شمېر عربي ويونکي ئې کارګر ول، ځنګه چي دا غر سخت يخ دئ، ويل کيږي چي په دې ستونزمن کار کي ۸۰۰ کارګرو ژوند له لاسه ورکړ، ځايي سپين ږيري لا دا هم وايي چي انګرېزانو چي به کله مازيګر کارګرو ته يوه-يوه انه مزدوري ورکړه، نو د شپې له خوا به ئې بيرته د يوې ډمي د رقص په بدله کي ځني اخسته!

د دې کار له پاره تر ډېره کار له اوښانو، فيلانو، غاترو او خرو څخه اخستل کېدی. ويل کېږي چي ۲۵۰۰۰ پنځه ويشت زره خرو، فيلانو او اوښانو کار پکښې کړی دئ. وای دوی به د بابر کځ څخه څو ميله ليري، د ختځ په نامه ځاي څخه د ماشينونو له پاره تېل او نور سامانونه د اوښانو په وسيله راوړل، وروسته به ئې د اورګاډي په مټ تر تونل پوري رسول. کوړک تونل په هغه وخت کي د هند لومړي او د نړۍ څلوم لوی تونل وو او اوس (۲۰۱۵ع) د نړۍ اتم اوږد تونل دی، د دې تونل اوږدوالی ۹۲،۳ کلومتره دئ، ورپسې (مخ پر لوېديځ) شپږ تونله نور دي چي هر يو په ترتيب سره (۱۱۰فټه، ۱۶۰فټه، ۷۶۰ فټه، ۳۶۳فټه، ۳۷۳ فټه، ۷۹۳ فټه) دي، د هر تونل پر سر د بشپړ بډو لوحې په اساسي ډول دننه په خښتو کي ليکل سوي دي. دا به ښايي ډېر ستونزمن کار وو چي انسان دي په بېلچه او ګولنګ په زرهاوو ګزه غر وکيندي. خو په هغه وخت کي چي انګليس د (ګريټ ګېم) په نامه لوبه کول، دا شيان يو سوغ نسوار هم نه بلل او غوښتل ئې

چې د اورګاډي دغه پټلۍ تر کندهاره پورې ورسوي، ځکه انګرېزانو غوښتل له روسانو مخکې سیمې ته په اقتصادي او ټولنیزو کړو وړو کې جدي بدلون ورکړي. خاص الخاص صنعتي انکشاف او هلته د کار مارکیټ ته، همدا د سنډېمن (د بلوڅستان والي) پلان وو چې د سیمې تر زړه ئې د اورګاډي پټلۍ او ټلیګراف سیمونه وایستل، ان دا پروژه ئې د کندهار سټېټ رېلوې (د کندهار سرکاري اورګاډی) په نوم پېل کړې ده چې په لنډو به یې ورته «کې – سي – آر» ویل خو په خپل دې خوب کې شرمنده سول او په ۱۸۹۳ع کې د ډیورنډ تر لاسلیک وروسته دوی دغه پټلۍ تر چمن نه سوای تېرولای.

ویل کېږي چې د دې کار له پاره انجینر یو ټاکلی وخت غوښتی وو، خو کله چې له دواړو خواوو څخه پر ټاکلي وخت تونل سوری نه سو نو درې ورځې وروسته انجینر په ټوپک ځانوژنه وکړه(۹) انجینر فکر کاوه چې له دواړو خواوو څخه کیندونکي کارګر سره چپه سوي او درې کاله خواري ئې برناحقه ولاړه. نو د یو لوی انجینر له پاره دوني لو غلطي نه ښایي، خو نادره دا وه چې د ده تر مرګ یوه ورځ وروسته تونل سوری سو، د دې انجینر قبر تونل پر سر تر هغه وخت پورې لا وو چې له سیمې څخه انګرېزان وتل، خو وروسته د قبر څخه مړی راکښل سوی دئ، اوس ئې د قبر نخښه نه ده پاته.

د تونل په مابینځ کې ډېرې چینې سته چې پر لارې ئې د اوبو شورهار مالومېږي، کله چې تاسې د رېل ګاډۍ په ډبو کې یاست د دې درک نه درمالومېږي چې مخ پر شېوه ځو که مخ پر پورته، منګر په تونل کې یو خورا ژور ځای هم سته چې یوازې و چلونکې کس ته مالومېږي ځکه چې په هغه وخت کې د ګاډۍ الایده خبرتیا (الارم) ولګېږي.

دا تونل تر اوسه پورې لا د کار وړ دئ او هره ورځ دوه واره د چمن–کوټې اورګاډۍ پکښې تېرېږي. په ۱۹۲۸ع کې امان الله خان له خپلې مایني سره یو ځای د همدې کوړک د لارې د هند، مصر او اروپا اووه میاشتنی سفر پېل کړ، چې انګرېزانو په چمن کې الایده تشریفاتي مراسم ورته جوړ کړي ول، په دې مراسمو کې د کوړک پښتنو ته هم بلنه ورکول سوې وه. خان شهید او په زرګونه پښتانه چمن ته د هغه هر کلي ته ورغلي ول. د کلای عبدالله خان، ګلستان، بوستان او کوټې پښتانه هم ورته ولاړ ول. دې ورځې او په دې ورځ له پښتنو سره د امان الله خان ښې وضعې ډېر زیات نقش جوړ کړ، خان شهید کاږي:

"... د غازي امان الله میني او سرېټوب پر پښتنو ډېر برید کړی وو، په میاشتو خو به دغه خبرې کېدې، تر دې چې تر اوسه لا هم خلک د دغې ورځې خبرې ډېرې په خوند او مینه کوي".

خو په دې ورځ یو دوو پېښو خان شهید سخت زهیر کړ، یوه په ظاهر د معمول پېښه وسوه، چې د هیڅ چا نظر ئې وانه خیست، خو پر خان شهید ئې داسې برید وکړ، چې د ده د ژوند د لارې په ټاکلو کې ئې ډېر لاس دی، پېښه دا سې وه چې په هغه ورځ په چمن کې باران او خټې وې، نو کوم ګورا (انګرېز پوځي)

چي امان الله خان ته سلامي ورکول، د هغو بوټونه په ختو وه؛ نو چي باچا راورسېدئ هندیانو (د هند خلګو) د هغو بوټونه په دسمالونه پاکول، دې په ظاهر د معمول پېښې دی ولړزاوه، دی وایي: "... ما چي دا ولیدل ډېره مي خوا شنه سوه او چورت واخستم چي دا ولي موږ پښتانه او هیندکیان دومره سپک یو؟ په کار خو دا وه، چي نن د پښتنو دې پښتون باچا ته د پښتنو خپل فوجي کنډک سلامي ورکولای، که نه وای نو هندکي خو وای! دا څه دئ چي سلامي انګرېزان ورکوي او هندکیان ولاړ دي، د هغو بوټونه پاکوي دا ټول زموږ او د هند د مریتوب پای دئ. په دې چورت کي دومره ورک سوم چي نه مي د توپو ټک ته پام وو او نه هغه زرګونو خلکو ته، چي په دې کي ټول خلک ولاړ سول، نو زه په دې پوه سوم چي باچا راورسېدی".

دا بله هم دغسي د معمول پېښه وه، کوم وخت چي باچا تر سلامۍ وروسته د خلکو خوا ته راتلی او ودرېده، نو ئې پوښتنه وکړه، چي: "تاسي پښتانه یاست، په پښتو پوهېږئ؟" څه ئې ویل غوښته خو خلکو ناري جوړي کړي وې، نو هغه هم ټېسن (سټېشن) ته څه خوا بدی روان سو. خان شهید کاږي: "... د خلکو دې بې سرښتې کار او خواله مي ډېره خوا رابده کړه. په کار خو دا وه چي زموږ د ټولو له خوا یوه سړي هر کلی ورته ویلی وای او د هغه جواب مو اورېدلی وای او په یوه آواز مو څو ناري کړي وای، که څه هم تر دغه وخته ما نه په څه ډله یا ګوند کي کار کړی وو، نه مي د بل چا کامي ډله یا ګوند (تنظیم) لیدلی وو، خو یاد مي دي چي هغه درسته ورځ او څو ورځي نوري مي زړه ډېر بد وو او دغه چورت راسره وو چي زموږ دا بده ورځ به څنګه او کله بدلېږي؟".

یو بل ځای کاږي: "... امان الله خان چي له خپل هیواد څخه د تل له پاره واته (۱۹۲۹ ع جولای) نو د هغه ګاډۍ د ګلستان پر سټېشن ودرېده، ډېر خلک سټېشن ته ورغلي ول، که څه هم هغه ټول خلک پر هغه راټول سول، ناري ئې وهلې، خو هغه ورته هېڅ ږغ و نه کړ او نه ورته ودرېدئ. امان الله خان دا جوش او بېوسي تر پایه کتله، خو په خوله ئې هیڅ هم نه دي ویلي. په زړه کي ئې ګوره چي ارمان به ئې کاوه او که به ئې ویل چي د نامرده کام سره هم دغه وړ دي چي پر وخت ځان نه خبروي او پوهوي او بیا لکه ښځې ژاړي".

**شیله باغ:**

د تونل په ختیځه خوله کي د اورګاډي تم ځای (سټېشن) سته چي شېله باغ ورته وایي. دلته یوه نظامي فرقه (چاونۍ) یو وړوکی روغتون، مجهز ټلیګراف دفتر، کوچنۍ باغچه، د فاتحو فوځیانو په نامه څو لاري، د سوداګرو د ارام له پاره لو او پراخه برنده او د تونل کیندلو پر وخت د کارکوونکو د اوسېدو ځایونه جوړ سول. د دې ځای نهایت خوړو اوبو او زرغونتیا ډېر لوړ پوړي انګرېز مشران همدلته مېشته کړي ول، خو دغه ځای تر پایه د اڅکزو له غلچکي بریدونو خلاص نه سو او تل به ئې ستونزي ورته جوړولې، که د هغه وخت د انګرېزي لیکوالانو لیکني لولو تر ټولو لو ستونزه ئې د قبلانو، اسانو او عسکرو

ورک کېدل او د ټلیګرافي سیمونو پرېکېدل دي.

د شېله باغ په اړه لیکوالانو ډول – ډول ناسم مالومات ورکړي، د بېلګي په ډول ځینو لیکلي: کوم انجینر چي تونل ئې جوړ کړ نوئې د خپلي ماینې نوم چي (شهلا) وه پر کښېښووئ او یا هم د تونل د پرانستو په ورځ یوې نڅاګري چي (شهلا) نومېده، د انګرېز مشرانو زړونه لاس ته راوړل نو له همدې امله ئې ورباندي نوم هم شېلا باغ کښېښووئ، خو دا خبري ټولي ناسمي دي په اصل کي شېله په کندهاري لهجه کي د دوو غرونو په مابینځ کي یو لږ هواري ځکي ته وایي، دې ته هم ځکه شېله باغ وایي چي په همدې شېله کي یو کوچنوټی باغ سته، چي اوس ئې یوازي د شنو ونې پاته دي.

د پښتو د نوموتي شاعر قاضي ملا عبدالسلام اشېزي[۱۰] اخند زیارت او کلی (ښاخهٔ) هم د شېله باغ څخه د شمال پر خوا پرته ده. اشېزی د کوړک په اړه یو ځای کاږي:

زما په ډوول به مي بیده پښتانه ویښ سي
زما اذان هر ځای ته رسي له کوړکـــــه

## د کوړک غره ختیځه لمن:

په سیاسي لحاظ په پښتونخوا کي د اڅکزو مشري د ګلستان د خانانو، د عنایت الله کاریز د خانانو او د عبدالله خان د کاریز د خانانو په لاس کي وه او د احمدشاه بابا راهسته چي روشندل خان د هغه عرض بیګي (د دفتر رئیس) ووء دا مشري ئې درلوده. تر هغه وروسته غازي عبدالله خان ، ګلستان خان، محمد انور خان، عبدالصمد خان محمد ایوب خان او داسي نور پکښې ځلېدلی دي. اوس هم د عبدالله خان کهول پکښې مخکښ رول لري.

اوس به پر هر کاریز څه ناڅه وږغېږو:

## عنایت الله خان کاریز:

روایت دئ چي عنایت کاریز تر ګلستان کاریز ښه ډېر وخت مخکي د شېردل خان اڅکزي[۱۱] له خوا کښېل سوی، بیا وروسته بوستان خان ګوجنزی حمیدزي رانیولی دئ، او عنایت الله چي د بوستان خان زوی وو اباد کړئ، په ۱۹۰۵ع کي چي د برخوردار کهول مشري عنایت الله کوله نو کاریز هم د ده (عنایت الله کاریز ) په نامه مسمی سو.

وای دا کاریز د هند په نامتو کاریزو کي ګڼل کېده، د دې کاریز د ښه والي اټکل له دې څخه کېدلای سي چي په ۱۹۰۱ع کال کي ئې دوې د شفتالو درختي په ۱۶۰ یو سل و شپېته هندي روپیو خرڅېدې. په دې وخت کي د دې ځای د خلګو سرشمېرنه ۹۰۱ تنه ښوول سوې ده.

د عنایت الله خان زوی سلطان محمد خان او د هغه زوی نورمحمدخان نومېده چي نومیالی زوی ئې عبدالصمدخان شهید (۱۹۰۷–۱۹۷۴دسمبر۳) دئ، برخوردار له احمدشاه بابا سره د پاني پت په جګړه کي ملګری قوماندان وو او بابا به دی په ښو ملګرو کي یاداوه. عزیزالدین وکیلي په «تېمورشاه دراني» کي کاږي: "څنګه چي برخوردار هم له وزیر اعظم شاولي خان بامیزي سره د

تېمورشاه په وړاندې ملاتړی وو، نو به هر وخت بېره ورسره ملګرې وه او د یوه مناسب وخت په انتظار وو تر څو تېمور ئې وبخښي، یو وخت چې کله تېمورشاه بابا کندهار ته د پلار د زیارت په مخصد راتلی، برخوردار یو پړی له ځان سره د احمدشاه بابا زیارت ته یوړئ، د پړي یو سر ئې په خپله غاړه او بل سر ئې د بابا د قبر په موړې پوري وتاړه، کله چې تېمور دی ولید، د واره ئې تېري ګناوي ور وبخښلې او له ځان سره ئې شاهي مقام ته بوت".

د خان شهید پلار نور محمد خان او د هغو د کاله ډېری مشران د میوند په غزا (۱۸۸۰ع) کي له ملي اتل ایوب خان سره ملګري ول، کله چې عبدالرحمان د انګرېز په کومک د افغانستان واکمن او ایوب خان پرنګیانو د پنجاب په لاهور کي نظر بند کړ، نو نورمحمد خان هم په رېګ کي شمشوزو ته ننواتیورغلی.

څنګه چې د ګندمک او ډیورنډ منحوس تړونونه کېدل نو د سیمو خلګو د خپلو تجربو او سیاسي دوربینونو په وجه ځانونه خپلو اصلي استوګنځایونو ته رسول، نو نورمحمد خان هم د پنجوایي زنګاوات په بیلومبي کي خپل جایداد د هلمند د بارکزو پر مشهوري کورنۍ (د مولوي حضرت کورنۍ) باندي په قطعي بیه خرڅ کړ او عنایت الله کارېز ته راغلی[۱۲] د خان شهید د مور پلار محمد حسن خان هم لومړی له ایوب خان سره په لاهور کي بندي سو خو وروسته عنایت الله کاریز ته راغی. د نورمحمد خان مشر زوی عبدالسلام او کشر ئې صمد خان وو دوې لوئي ئې درلودلې، خان شهید د پلار په اړه کاږي:

"موړه ماړه خلک نه وو، ایله ګوزاره وه او ده، تل به مي لاس تنګ او پور وړي وو او تر اوسه هم دا شان یو. د کورنۍ مخکه مي دومره ده، چي تنګه ګوزاره راکوي"[۱۳].

خان شهید له اوږد زندان ګاللو وروسته په ډېره نامردي د ۱۹۷۳ع کال د ډیسمبر میاشتي پر دریمه د کوټي په جمال الدین افغاني روډ کي په خپل کور کي په یو لاسي بم د ۶۶ کالو په عمر شهید کړل سو. اوس ئې پر ځاي د ده دریم زوی محمود خان اڅکزی د سیمي د پښتنو مشرتوب پر غاړه لري.

**چمن:**

چمنداس په اصل کي د هغه هندو تجار نوم دئ چي په لومړي ځل ئې دلته په ۱۸۷۷ع کال کي یو تجارتي منډۍ جوړه کړه. د دې منډۍ ځخه به کندهار، ښکارپر، ملتان او هرات ته مالونه تلل – راتلل. په ۱۹۰۴ع کي نوموتي تجار نعیم خان توخي[۱۴] په ګلستان کي یوه بله منډۍ هم جوړه کړه چي د سیمي تازه مېوې به د اورګاډي له لاري هند او نورو سیمو ته تللې، د چمن پخوانی نوم پړاو[۱۵]وو.

په چمن کي اوس هم د هندوانو دوه مندره ودان دي، او ان اوس هم ځیني بازارونه د دوی په نومونو یادېږي لکه سناتن بازار، رام چند بازار، توله رام روډ (سړک) تړنچ روډ او داسي نور. چمن پر ځلورو علاقه داریو وېشل سوی دئ، ډوبندی، چمن، ګلستان او عبدالله خان کلا چي اڅکزي، کاکړ، ترینان، نورزي سیدان او یو څو کوره پنجابیان او هندوان

پکښې اوسي. د کوړک په لمن کې چمن اوس هم یو نړیوال تجارتي ښارګوټی دئ، چې د سیمې په تجارت کې مهم رول لري. په دې ښارګوټي کې که څه هم چې اوبه ئې ډېرې لاندېز نې دي خو یو څو د پراخو اوبو لرونکي کاریزونه پکښې سته لکه اوبتو کاریز، مرده کاریز، روغاني کاریز او بوغره کاریز چې اوبه ئې چمن ښار ته پخوا راتللې.

خواجه عمران:

د خواجه عمران زیارت د کوړک غره و سهېل ته د غره په پای کې راځي، ویل کېږي چې خواجه عمران یو تقواداره تاجک تېر سوی دئ خو د ژوند نور اړخونه ئې ما نه کړه پیدا، په رېګ کې د (نانګۍ) زیارت ئې د خور دئ، دې زیارت ته څو لارې ورځي چې له ګلستان څخه پر خوړګۍ باندې لار ئې تر ډېره نژدې ده، پر دې زیارت باندې د اڅکزو د عثمان زو کهول پروت دئ چې په لومړي ځل خان بهادر غلام خان یو اساسي زیارت پر جوړ کړ، وروسته ئې زوی جګړن (مېجر) محمد رفیق خان دا زیارت لا پسې پراخ کړ.

**ګلستان:**

کیرو په خپل کتاب (پټان) کې د ګلستان په اړه کاږي: "... ګلستان خان چې پر نامه ئې د کوړک د غره په لمن کې یو کلی هم سته د زمان خان او شاه شجاع په ملګري کې مړ سو. دی اڅکزی وو او په ځوانمردۍ او وفادارۍ کې ئې ساري نه درلودی او یو وخت په پېښور کې د شاه شجاع والي هم وو چې د پېښور خلګ ئې تر اوسه په ښه نامه یادوي"[۱۶].

ویل کېږي چې د ګلستان نامتو کاریز چې تر پښینه پوري ئې سیال کاریز نه وو، همدغه ګلستان خان چې لا دا وخت د پېښور والي وو په سرکاري ډول کښلی (۱۸۳۹ع) چې وروسته ئې کلی هم د ګلستان په نامه سو چې اوس (۲۰۱۵ع) پوره اولسوالي د ګلستان په نامه ده، خو د (انور خان اڅکزي خاطرې) نومي کتاب کې مرحوم محمدعلم بځرکی ګلستان اڅکزی بولي خو وایي د اوسنیو حمیدزو په سجره کې نسته[۱۷].

دا کاریز وروسته 'سپګیو/ترینانو' رانیولی، وروسته بیا غازي عبدالله خان او ورور یارمحمد خان ځني رانیولی. دغه کاریز ۱۸ شواروزه (شب و روز) (۱۴ اینچه) اوبه درلودلې، چې په ۱۸۸۹ع کال ئې دوولس شواروزه عرض بیګي کهول ته ورکول سوې او پاته ئې پر جلېزو، حمیدزو (اڅکزو) عبدالرحمن زو (کاکړانو) لاجورو (سیدانو)[۱۸] غبیزو (اڅکزو ) باندي وېشل سوي وې[۱۹].

څنګه چې د ګلستان اوبه او خاوره خوړه ده نو ښه سېب، توت، خټکي او انګور لري. د روسانو تر راتګ دمخه د ګلستان مېله په سیمه کې د خپل شهرت له امله په نام وه، له هند افغانستان، پاکستان او نورو سیمو څخه به پښتانه ورتلل، دا مېله به تر ډېره د سیبو په موسم کې کېدل، زما د پلار له خولې چې په ګلستان کې ځایي خلګو هوټل او مسافرخانو ته اجازه نه ورکوله ځکه چې دا ئې د ځان له

پاره عار (پېغور) باله، چې د دوی په سیمه کې دي خلک په هوټل کې ډوډۍ وخوري، بس د هر څو مېلمنو خدمت ئې د پښتانه په صفت د خان فرض باله.

## غازي عبدالله خان:

روښندل خان (د احمدشاه بابا د دفتر مشر) څلور زامن درلودل: عبدالله خان، میر احمدخان، یارمحمد خان، عبدالوهاب خان.

غازي عبدالله خان د افغان انګرېز په لومړۍ جګړه (۱۸۳۸-۱۸۴۲ع) د ملي مبارزینو د پاڅون په هغه غونډه کې مشرتوب کړئ چې ډېر تاریخپوهان ئې د کابل ببړنۍ لو جرګه بولي چې د انګرېزانو او شاه شجاع پر خلاف جوړه سوې وه، دا پاڅون چې نایب امین الله خان ئې هم ملګری وو، د ۱۸۸۱ع کې د نومبر میاشتې له پنځمې څخه تر ۲۹ پورې روان وو. پر بالاحصار کلا باندې افغان اتلانو سور اور بل کړ. په دې وخت کې د انګرېزي قواوو سپه سالار الفنسټن وو چې په کابل کې جنرال پالک، میکناټن، جنرال ناټ، کپټن برنس، جنرال سیل او داسې نورو انګرېز قومندانانو هم ګډون پکښې درلود. لیډي سیل په خپلو یادښوتونو کې کاږي: "... غازیانو په تېره بیا غازي عبدالله خان غوښتل زمان خان چې د اسد خان زوی د پایندخان لمسی وو د پاچهۍ پر تخت کښېنوي، خو د نومبر میاشتې پر دېرشمه نېټه غازي عبدالله خان زخمي او درې ورځې وروسته په کور کې وفات سو، د عبدالله خان مرګ او نسبتاً له انګرېز سره مناسبو اړیکو د زمان خان بل وړور دوست محمد خان ته پاچهي ور په برخه کړه"[۲۰].

غازي عبدالله خان له اولې ښځې څخه دوه زامن درلودل، مشر ئې اکرم خان او کشر ئې اسلم خان وو، اکرم خان د امیر شېرعلي خان په وخت کې لومړی د کابل په لوېدیځ (هزاره جات) کې، وروسته په قطغن کې حاکم تېر سوی دئ، د ژوند حال ئې نور نه دئ روښانه، په هرات کې د خواجه عبدالله انصاري په زیارت کې د امیر دوست محمد خان سر ته د ده له وصیت سره سم خاورو ته سپارل سوی دئ. مشر زوی ئې احمدجان وو چې د امان الله خان په وخت کې د هرات مستوفي وو، د احمد درې زامن ول: غازي محمدهاشم، محمدعسي خان او حسن خان.

د غازي هاشم خان دوه زامن ول: چې محمد کریم خان او محمدقاسم خان نومېدل. د محمد کریم خان درې زامن ول: عبدالحلیم خان، عبدالرحیم خان او عبدالحکیم خان. د دې کورنۍ اوسري کسان د عبدالرحیم خان مشهوره زامن زلمی خان او ګلالی خان دي، چې په کندهار کې اوسي.

د کریم خان د بل ورور محمد قاسم دوه زامن ول چې حاجي شاه ولي خان او شاه محمد خان نومېدل. د غازي هاشم خان د دوهم ورور عسي خان شپږ زامن ول: محمد یعقوب خان مشهور په ګل اغا ...

د غازي عبدالله د بل ورور یارمحمد خان زوی سربلند خان نومېده چې د هغه زوی بیا حاجي سعادت ملوک خان او د ملوک زوی د سقاوي د وخت نوموتي مبارز او لیکوال حاجي

محمد انور خان وو، د انورخان شېر زامن دي چي درې پکښې ځلېدلي ليکوالان محمد علم بڅرکی، محمد حسن او ستاره اڅکزی(۲۱) دي. د دې کورنۍ اوسري کسان زمري محقق، ننګيالی بڅرکی، محمد قاهر قادم، داود اڅکزی، د افغانستان د انقلابي جميعت مشر کانديد اکاډميسن محمدظاهر اُفق او داسي نور دي.

د انګرېز له راتګه مخکي د غازي عبدالله خان کشر زوی اسلم خان عرض بېګي د کام مشري پر غاړه درلوده، خو سيمي ته د انګرېز په راتګ سره ده او زامنو و نه سوای کولای اڅکزي پر لار کړي، وروسته دا مشري سربلند خان ته وسپارله سوه، چي له کندهاره له خپل ال و ايال سره د پښين ناوې ته کډه سو منګر ده هم خپل خلګ نه سوای راټينګولای، هغه وو چي په ۱۸۸۹ع د انګرېز افسرانو په لمسون هري پښې ځان ته په سرکاري ډول بېل- بېل مشران وټاکل، په دې ډول نو انګرېز ګواهر څه تر سينه لاندي کړل.

په ۱۹۰۰ع کال د دې سيمي نور مشران چي د عرض بېګي او برخوردار تر کهاله دباندي دي، لکه: آغا پير عليزی، ملک پائندخان، ملک ايوب بادينزی، خوشال کاکوزی، ملک پارالدين خان عشېزی، پکارخان ملېزی، سمندرخان عليزی، ولی محمد، محمد عمر، تاج محمد خان حميدزی، اکبر بادينزی او داسي نور دي(۲۲).

له چمن څخه ۳۰ ميله لمر خاته خوا ته يو کارېز دئ چي دلسوره کارېز ئې بولي، ويل کېږي چي دا کارېز د زردښتي دين خلګو کښلئ. د غازي عبدالله خان پلار دا کارېز له کاکړو څخه په ډېره لوړه بيه رانيولی دئ، دا کارېز چي شل شواروزه وو؛ يو شواروز ئې په ۱۸۸۸ع کي د اورګاډي ادارې د خپلو کارکوونکو له پاره په ۷۵۰۰ هندی روپيو رانيولی، ۹ شواروزه بيا حرمزو (د سيدانو يو پښه) رانيولي، دوه شواروزه غلام محي الدين خان (د پنجاب د بنکنګ کمپنۍ مشر؟) ګرو کړی او د اڅکزو په لاس کي دئ. اوس دا کارېز د تاج محمدخان د اولادې په واک کي دئ، د دې کارېز اڅکزی پر دوولس کورنيو وېشل سوي، ويل کيږي چي د دې کارېز ماليه معاف وه.

د کارېز تر اخسيتو وروسته غازي عبدالله خان پر دې ځای يو غټه برجوره کلا جوړه کړه چي نوموتي انګرېز سيلاني چارلس مِيسن(۲۳) په ۱۸۴۰ع کال کي ليدلې ده، دی په خپلو يادښتونو کي کاږي: "... دا کلا اتلس خوني، يو محرير، نهه پياده، يو خاکروب (ځای جاروکوونکی) او شپږ سپاره لري. بازار د کلا په جنوب کي پروت دئ ، ۵۹ دوکانونه لري، بازار يو چوهدري (يو ډول د بازار استازی چي پخوا به د ده په لاس د بازار ماليه ټولېده او دولت ته به ورکول کېده خو دی به له ماليې خلاص وو) دوه دلالان لري، له افغان سامان څخه پر يوه روپي درې پايې ټيکس اخستل کېږي، اوبه له يو ځاه څخه اخيستل کېږي چي يو هندو (پنجايت) په ۸۰۰ هندي روپيو کښلی، د بازار په سهېل کي د انګرېزانو يوه هديره سته چي شاوخوا دېوال او ۱۵ قبره لري، مخ پر سهېل د خښتو په يو چارديوالي

کي د سمايلزي (اسماعيل) سيدانو يو نيکه «برت نيکه» ښخ دئ (برت د پښين د باکو کلي اوسېدونکی وو – پښتون زوی) د زيارت پالوال د سيد محمد کلام په نامه وو چي د پښېنور وو، په دې زيارت کي دوه څهان، اته خوني، يو ماجت او د ډوډۍ ورکولو له پاره يوه لو برنډه سته. دلته هره ورځ دوه واره هر څو کسانو ته ډوډۍ ورکول کېږي، ځايي خلګ دې زيارت ته بسپنه ورکوي، دلته نژدې د «ښاري کاکړ» په نامه بل زيارت هم سته".

د سپين ږيرو له خولې چي د (تاش رباط)(۲۴) ناوه له کاکړو څخه مري بلوڅانو ونيوله، تر ډېره پوري دلته بلوڅان ول چي اوس ئې هم يوه پراخه هدېره د شهيدانو د قبرو په نامه سته، وروسته احمدشابابا د اڅکزو په مټ دا ځای له بلوڅانو خالي او خپلو ماماخېلو (الکوزو) ته وسپاری، ښه ډېر وخت وروسته بيا حميدزو اڅکزو دغه سيمه په ۵۰۰۰ هندۍ روپو څني رانيوله.

په پای کي بايد ووايم چي د دې سيمي خلګو تر ډېره له خپل پلرني وطن افغانستان سره خپلوي پاللې ده، کله چي د پښتونستان د غورځنګ له پاره هجرتونه پېل سول، ايوب خان او صمد خان سره د سلهاوو اڅکزو او نورو کامونو د دې غورځنګ د چلولو له پاره افغانستان ته راغلل، په دې کسانو کي ارباب عبدالقادر کاسي (د ظاهر کاسي پلار – ظاهر د عوامي نشنل ګوند ايالتي مشر دئ) عبدالباقي خان اڅکزی، ملک اختر کاسی، محمد اعظم اڅکزی (د ايوب اڅکزی زوم) خان حيات الله خان پيرعلي زی(۱۳۵۷هـ ش کي د افغان طياري په ايله کېدو کي مړ) کشر ورور سرور پير علي زی او داسي نور په لسهاوو مشران ول، په دوی کي داسي کسان هم ول لکه ايوب خان چي د پښتونستان له پاره ئې ۲۷ کاله هجرت تېر کړ او په ۱۹۷۶ع کي په ډېره بېنوايي کي هورې وفات او په شهدای صالحين کي ښخ سو. د ده زوی جعفرخان اڅکزی نومېده چي څو کاله د مخه په کوټه کي وفات سو. جعفر خان په اردو او پښتو ليکني کولې، د نورو کتابو تر څنګ د سوالاً جواباً په نامه يو مشهور اردو کتاب ئې ليکلی دئ.

اخځليکونه، يادښتونه او لمنليکونه:

۱– جلګه: د ميوند د غزا نامتو مجاهد غازي مېداد خان اڅکزی په همدې جلګه کي زېږېدلی دئ. دی د بدين خان زوی، د ګل محمد خان لمسی، د ترهټ خان کړوسی او مهک اڅکزي کوسی وو. د هرات د ساګزي تېر خان خپله لور ببو و مېداد خان ته ورکړې وه. دوه زامن ئې ول چي مشر ئې سيدوخان او کشر ئې ميرزا محمد ايوب خان نومېدی. لور ئې محمدزی نومېده.

په ۱۸۸۰ع کال ده ته د غازي محمد ايوب خان له خوا ووېل سوه چي د خپل تېر خلک چي زياتره د توبې د غرونو تر منځ آباد ول د انګرېز پر ضد جهاد ته راوبولي. مېداد د ميوند په جګړه کي سخت ژوبل سو خو بيا هم د جګړې تر پايه په مړانه وجنګېدی. د ده تر مړيني وروسته ئې کورنۍ هرات پرېښوه او په کندهار کي آباده سوه. مشر زوی ئې د ناروغۍ له امله مړ سو او اولاد ئې نه درلودی. کشر زوی

ئې میرزا محمد ایوب خان وو چې په پښتو او فارسي ژبه ئې شعر وایه او دوې قلمي شعري ټولګي ئې پاته دي چې پکښې په پارسي او پښتو شعرونه د ده په ښکلي لیک لیکل سوي دي. ایوب خان په کندهار کي د مالیې د وزارت چارواکی وو چې وروسته بیا د ګېزو اولسوال وټاکل سو. دوې مایني ئې په روزګان کي درلودې او یوه ئې په کندهار کي وه. لور ئې (محمدزی) د کندهار عالمه ښځه وه چې نورو ښځو ته ئې د قرآن د تفسیر د ښوونې تر څنګ ادبي ښووني هم کولې. په کندهار کي ډېر ستر خلګ همدې محمدزی پر لمانځه درولي دي.

د غازي مېداد خان نیم لمسیان او کړوسیان اوس په روزګان او نیم ئې د سویلي پښتونخوا په کوټه ښار کي آباد دي.

۲- بوغره: بوغره توری د هلمند و دوو لاسي کښل سوو ولو ته هم کارېږي، زاهد پښتو-پښتو سیند بوغره داسي مانا کوي: بوغره، ځینځیر، خاوره، کوډل، غار، چادري، کورګی، کرښه، بوقره: ۱۱۶مخ. قلندرمومند په دریاب کی لیکي: په افغانستان کي ځینځیر، پوړوني، او خاوري ته هم «بوغره» وایي: دریاب ۱۷۸مخ پېښور چاپ ۱۹۹۴ع.

۳- بابک صاحب: بابک صاحب ښادېزی سید دئ. لمسیان ئې د ارغسان د قوغي د سیمي نامتو مشران باقي جان او غني جان اغا ول (په ډېری کي هم د بابک صاحب په نامه ځای سته چې د باقي جان پلار پکښې ښخ دئ، چې هغه هم په بابک صاحب مشهور دئ) د غني جان زوی حاجي عبدالنافع جان اغا دئ چې په (چینه = د بابک صاحب سره نژدې) کي ښخ دئ، اوسری (اخري) کس ئې عبدالحلیم جان اغا نومېږي چې په کوټه کي اوسي.

۴- بلوڅستان ګزیټر (د بلوڅستان جغرافیایي قاموس).

۵- لوی احمدشاه بابا ته د ژوند په وروستیو شپو ورځو کي د پزي خوراړه (سرطان) ناروغي ورلوېدلې وه. د تداوی واری چې ئې تېر سو، نو د طبیبانو په مشوره د توبې سیمي ته ولاړ ځکه د هغه ځای هوا ئې د ناروغی له پاره مناسبه تشخیص سوې وه، بابا د (۱۷۷۲ع=۱۱۵۱هـ ش=۱۱۸۶هـ ق) کال د لومړی خور (ربیع الاول) په دوهمه د پنجشنبې په ورځ ځانښت د توبې په لمن (مرغه) کي د عاشېزو شپشیون برج ته نژدې په یرغکی کلي کي د خپل یوه کومندان په کور کي وفات کړئ.

۶- د افغانستان بین المللي روابط؛ د مرحوم فضل ربي پژواک لیکنه.

۷- په دې مشرانو کي د عبدالهادي رېشا پلار او استاد م. معصوم هوتک نیکه حاجي عبدالغني (اکو لالا) د مولوي عبدالروف کاکړ زوی مولوي عبدالواسع اخندزاده، نورمحمد شاه اغا او نور ډېر مشران ول چې هر یوه خپل بیرغ درلود، نورمحمد شاه د وهابشاه اغا زوی د کندهار د سدوزو د کوڅې اوسېدونکی وو، وای دی پر امان الله خان غازي دوني ګران وو چې له ځانه سره به ئې پر یوه غوري کښېناوی. د هوتک صاحب له خولې چې زموږ په کور کي د غزا د کال بیرغ تر دا

وروستيو وختو پوري لا پروت وو.

۸ - کندهار د تاريخ په اوږدو کې؛ د مطيع الله روهيال ټولونه (د کندهار د اطلاعاتو کلتور رياست چاپ۱۳۸۴هـ) د حاجي بابا مصروف ليکنه.

۹- يو اردو ژبی ليکوال عبدالقادر شاهواني بيا په تاريخ بلوڅستان کې د ده مرګ له غره ايله کېده بولي او وايي چې دا ځانوژنه نه وه.

۱۰- قاضي ملا عبدالسلام اڅېزی په ۱۸۷۸ع کال د ملاحبش اخوند په کاله کي زېږېدلی، په ۹۶کلنۍ کي په ۱۹۷۴ع کال د جنوري پر ۲۶مه په حق ورسېد، د ده يو جنجالي شعري ټولګه يو وار انګرېز په اور سوځلې، چې ده به تر مرګه يادوله، د سوسن چمن په نامه سمه نخسه ئې تر اوسه لا نه ده چاپ، ده ته د کوږک ستوری هم ويل کېږي. د ده پنځه زامن پاته سول: ملا يحيی، شمش طالع، هاتف اخوندزاده، عارف اخوندزاده، اصف اخوندزاده. په دوی کي طالع اخوندزاده يولس شعري ټولګي لري.

۱۱- د اڅکزو د حميدزو د جلبزو په پښه کي دوه کهوله دي چې يو ئې برخوردار کهول او بل ئې عرض بېګي کهول دئ چې د غازي عبدالله خان کهول ئې هم بولي. د سدوزو په دوره کي برخوردار کهول د افغانستان له خوا او عرض بېګي کهول د پښين له خوا څخه مشرتوب درلود، دغه شېردل خان د برخوردار کهوله څخه وو چې د تېمورشاه بابا په وخت کي وزير وو، وای په دې وخت کي د برخوردار کهاله مشر محمدحسن اڅکزی وو، د محمد حسن پلار فتح خان اڅکزی د کندهار والي تېر سوئ دئ. د فتح خان په نامه د کندهار ښار په شاه بازار کي يوه کوڅه سته او د فتح خان کور تر دا وروستيو وختو پوري لا ولاړ وو.

۱۲- د ناوې دانشور، د کندهار منور، د زنګاوات مخور: استاد معصوم هوتک (علامه رشاد خپرندويه ټولنه،کندهار افغانستان- ۱۳۹۱هـ).

۱۳- ده د خپل ژوند اړوند څو کتابچې ليکلي چې د (زما ژوند او ژوندون په نامه چاپ سوې: ۲۰۰۴ع کوټه) لومړۍ کتابچه.

۱۴- په لومړي سر کي افغان حکومت له رېلوې سرک څخه ډېر بد وړل، ان وايي امير عبدالرحمن به افغانانو ته اجازه نه ورکوله چې د چمن له لاري څخه په ګاډۍ کي سفر وکړي، ويل کېږي چې د افغانستان حکومت يو کنډک عسکر په کندهار کي د دې له پاره وروزل چې د جنګ په وخت کي څنګه د رېل سرک تباه کړي. خو امير حبيب الله خان د کندهار د نامتو تجار نعيم خان توخي ورور دوست محمد خان په کراچي کي په لومړي ځل د افغانستان د امير تجارتي اتشه وټاکه، دوی دوه د افغانستان د نامتو تجار عبيدالله توخي زامن ول چې د امير له خوا ۱۸ فقرې هدايت نامه ورکړل سوې وه، همدارنګه نعيم خان د چمن تر څنګ په ګلستان کي يوه پراخه منډۍ جوړه کړه چې تر ۱۹۴۰ع پوري لا د افغانستان تازه مېوې د رېل د لاري د هند ټولو سيمو ته تللې.

۱۵- پړاو: د پړاو نوم مي زموږ له خلګو

(ارغسان) اورېدلی، د پلار له خولې مې چې په زاړه چمن (د کوړک غره په ببخ کې / د اوسني چمن لمرخاته ته) کې ئې د اسانو تبیلې (غوجلې) لیدلې وې، ځیني سپین ږیري وايي د کوړک غره په ببخ کې خورا اوږد چمن هم وو چې انګرېزانو به خپل اسونه پکښې تړل، یوې ټولۍ عسکرو به بیا ټوله ورځ د دې اسانو څار کاوه، او دوی (انګرېزان) به په کوړک کې په خپلو پوستو کې تیارسی ناست ول. ځیني څېړونکي د چمن نوم همدې چمن ته منسوبوي.

۱۶- Caroe, olaf, The Pathans: ۱۹۵۷ Landon, Macmillan and Company Limited,and New Yaor: St. Martin's press, Inc., ۱۹۵۸

۱۷- د انورخان اڅکزي خاطرات (د محمدعلم بڅرکي اثر) د احمدشا ابدالي خپرندویه ټولنه-کابل، افغانستان۱۳۸۹هـ).

۱۸- سید لاجور ښادیزی: ښادیزي د پښین د لمر لوېدو خواته د کوټي او چمن تر میانځ په سرانانو کې یو پراخه کورنۍ ده چې ویل کېږي د پښین ترینانو درې سوه کاله پخوا د یوې جوړې / روغې په بدله کې دوی ته خورا پراخې مځکې ورکړې، ښادیزي د پښین په سیدانو هم یادېږي چې دوې پښې ئې اوس ډېرې مشهورې دي لکه ښادیزي او یاسین زي. د سید عبدالرحمان شاه آغا ور نیکه سید آدم آغا د پښین له عمرزي سیدانو څخه وو چې وروسته د احمدشاه بابا(رح) په وخت کې په کندهار کې میشت سوی وو او د هغه زوی سید غلام جان آغا د کندهار یو لوی قومي مشر وو، د هغه زوی سید عبدالروف آغا د کندهار د سیدانو مشر او خان پاته سوی. د ده زوی سید عبدالرحمن شاه آغا وو چې د کندهار د لویو شخصیتونو څخه وو، وای دی لومړی کس وو چې په کندهار کې ئې یو عام میلمستون، باغچه (ګلبڼ) د حیوانانو یو ژوبڼ او په لومړي ځل یو شخصي میوزیم جوړ کړ. کله چې به محمدظاهرشاه کندهار ته راتلی نو د ده ژوبڼ او میلمستون ته به د سیل له پاره خامخا ورتلی. د ده کوټۍ اوس هم د سید عبدالرحمن شاه آغا په نامه د کندهار په نوي ښار کې موجوده ده او دې ته ورته یوه لویه کوټۍ ئې د کندهار په دهیمراسي کې هم سته. د دې ځای په کندهار کې د بامیزو کوڅه ده چې د بابیانو د کلا په استقامت ئې یو لوی احمدشاهي سرای اوس هم هلته د ده په نامه سته.

۱۹- د قاضي جلالدین بندوبست: ۱۸۹۶ع.

۲۰- د لیډي سیل یادښتونه؛ انګرېزي ویکیپیډیا.

۲۱- سِتاره: ستاره په۱۳۵۳هـ ش کال کې د کندهار د ښځو د ټولنې مشره وه وروسته تر هغه د کندهار د عینو لیسې مدیره وټاکله سوه. لوړې زده کړې ئې د کابل پوهنتون د تاریخ او جغرافیې په برخه کې د لیسانس تر کچې تر سره کړې دي. په ۲۰۰۹ع د کندهار ولایتي شورا د غړیتوب په وجه ووژل سوه، ستاره د دروېزه اڅکزی مېرمن وه، دروېزه د المان په هیواد کې د کیمیا په برخه کې د ډاکټرۍ تر کچې لوړی زده کړې کړې وې، چې د افغانستان په کچه کېماپوه وو.

۲۲- کوټه او پښین ګزیټر ۱۹۰۵ع کال.

۲۳- چارلس مِسن: اصلي نوم ئې جېمز لوییس دئ. په ۱۸۰۰ع کې د لندن په مډل سېکس کې زیږیدلی. د ده پلار جورج لوییس د ستنو جوړولو په یوه کارخانه کې مامور وو. جېمز لوییس تر ښوونځي وروسته په یوه شرکت کې ملازم سو خو د پلار سره په څه خبره خوابدی او په بنګال توپخانه کې ئې ماموریت وموند. دی په ۱۸۲۱ع کې هند ته واستول سو او د انګریزانو او د مرهټوو په جنګ کې شامل وو خو کله چې ئې په بهرتپور کې په لوی شمېر مرګ ژوبله ولیده نو زړه ئې له جنګه تور سو. په ۱۸۲۷ع کې له اګرې څخه له خپل یوه پوځي ملګري سره وتښتېد، خپل نوم ئې په چارلس مِسن واړاوه او څه موده په لاهور کې د سیک مهاراجه رنجیت سینګه په دربار کې له یوه فرانسوي جنرال وېنچورا سره ملګری سو. خو هلته د ده د نیول کېدو خطر وو نو خپل سفر ئې روان وساته او څه موده د ډېره غازي خان، کوړک او اباسین په شاو خوا سیمه کې د یوه فقیر په شان وګرځېدی. علامه رشاد بابا لیکلي چې دغه انګریز په غلا ځیني کیندني کړي دي او لس زره د افغانستان سیکې ئې له ځانه سره لندن ته وړي دي.

۲۴- تاش رباط: ویل کېږي چې کله به څوک له دولته یاغي کېدی نو کډه به ئې تاش رباط ته وړل. د تاش رباط په نامه درې مشهور متلونه سته: تر تاش رباطه به دي وځغلوم / تر تاش رباط به دي تېر کم. وهم به دي چې ګړنګ دي پر تاش رباط پراته وي.

ټولوونکی: رزمي

## ګل خبري

- که غواړې چې خلک ستا په باب ښه فکر وکړي نو د ځان ستاینه مه کوه.
- زړور سړی که څه هم یو تن وي بیا هم اکثریت جوړوي.
- خپلو هیلو او ارمانونو ته دي ډېره پاملرنه وکړه ځکه هغوی ستا د روح ماشومان دي.
- هغه څوک چې مخالف نه لري هیڅ پلوی هم نه لري.
- بدبینه سړی څوک دئ؟ هغه څوک دئ چې د هر شي په بیه پوهېږي خو د هیڅ شي په ارزښت نه پوهېږي.
- د ښځي سره مینه درلودل د هغې د ښایست له امله نه بلکې د ښځي ښایست ستا سره د هغې د مینې له امله دئ.
- حقایق له منځه نه ځي بلکي سترګې باندې پټېږي.
- کله چې ټول خلک یو شان فکر کوي په حقیقت کې هیڅوک کافي اندازه فکر نه کوي.
- مینه په کنډوالو کې ماڼۍ ابادوي.
- هیله هغه وخت په هدف بدلېږي چې د لاسته راوړلو له پاره ئې ګام پورته سي.
- بې سخاوته انسان د هغې شمعې په شان دئ چې روڼا نه لري.

پای



ليکوال : څېړندوي رفيع الله نيازي/کابل

# بهرنيانو ته د پښتو ژبې د زده کړې ربړې

مقدمه:

د مورنۍ ژبې د پرمختګ او ودې مسئله يوازې په دې کې نه رانغاړي، چې موږ خپلو ماشومانو ته په مورنۍ ژبه د زده کړې او په خپله ژبه د ليک لوست پر لارو چارو غور وکړو، بلکې دا مسئله خورا نور مهم اړخونه لري، چې که پام ورته و نه شي موږ به د مورنۍ ژبې د ودې او پرمختګ په برخه کې له ډېرو خنډونو سره مخامخ شو. په دې برخه کې يو مهم اړخ بهرنيانو ته د پښتو ژبې د زده کړې ستونزې دی. موږ د نړۍ والتوب (ګلوبلايزيشن) او معلوماتي ټيکنالوژۍ په پېر کې ژوند کوو، دنياوال يو بل ته ډېر نژدې شوي، انساني اړتياوې ورځ تر بلې ډېرېږي، سوداګري ورځ تربلې غوړېږي، ديپلوماتيکې اړيکې د وخت جدي اړتيا ګڼل کېږي. افغانستان پر نورو نړۍ والو سازمانونو سربېره په سيمه ييزه کچه د سارک، شانګهاي، ايکو او اسلامي کنفرانس غړی هېواد دئ. د يادو سازمانونو له غړيو هېوادونو سره سياسي، فرهنګي او اقتصادي اړيکې ساتل د افغانستان او د دغو هېوادونو مهمه اړتيا ده. په سيمه کې د موقعيت له امله هغه ورځ ليرې نه ده، چې افغانستان به د جنوبي اسيا، منځنۍ اسيا او منځني ختيځ تر منځ د مهم اقتصادي کوريډور حيثيت غوره کړي.

پر دغو خبرو سربېر، په سيمه ييزه او نړۍ واله کچه د پښتنو يو پيکه تصوير وړاندې شوی، په لوی لاس د پښتنو غليمانو نړۍ والو ته د پښتنو تاريخ او کلتور شډل، خيرن او بدرنګه معرفي کړی، څکه

چي پښتنو د حالاتو له غوښتنو سره سم نه پخپله نړۍ والي ژبي داسې زده کړې، چي نړۍ له خپل تاریخه خبره کړي او نه ئې نړۍ والو ته د پښتو ژبي د زده کړي مناسبي اسانتیاوي برابري کړې، چي هغوی پخپله د پښتنو په اړه مطالعه وکړي او و ئې پېژني. نو د دې لیکنې اصلي موخه هم دا ده، چي ولي بهرنیان پښتو ژبه سمه نه شي زده کولای او د پښتو ژبي پر ځای نوري سیمه ییزي ژبي لکه دري او اردو زده کوي، په دې برخه کي پښتنو تر کومه بریده خپل مسئولیت ادا کړی او سپینه خبره دا چي اوس نو په هره برخه کي د دې ګړندۍ نړۍ له چټک پرمختګ سره څنګه کولای شو، هوډمن، ډاډه او کره ګامونه واخلو، چي بهرنیانو ته زموږ د مورنۍ ژبي پښتو د زده کړي ربړي اسانه کړو.

بهرنیانو ته د پښتو ژبي د زده کړي په برخه کي ځینو حقدارو پښتنو لیکوالو په بېلابېلو پېرونوکي لومړنۍ هڅي کړي، خو له بده مرغه یا زموږ د هېواد د جګړه ییزو حالاتو او یا هم د واکمنو نظامونو د بې غورۍ له امله دا لړۍ هغسي چي ښایېدل و نه پالل شوه. د دویمي ژبي د ویونکو او زده کوونکو له پاره د پښتو ژبي د زده کړي لومړنی لارښود په احمدشاهي پېر کي اروابناد پیرمحمد کاکړ د حضرت احمدشاه بابا رحمة الله علیه زوی شهزاده سلیمان ته په دري ژبه د پښتو ژبي د زده کړي یو لارښود چي معرفة الافغاني نومېده ولیکه. افغانستان یا هغه سیمه چي پښتانه پکښي اباد دي د شمال له لوري روسانو او د جنوب له لوري د برتانوي هند د شرقي کمپنۍ له پاره خورا مهم ارزښت درلود، نو دغو دواړو د وخت زبرځواکونو ته دا ډېره اړینه وه چي د سیمي د نورو ژبو تر څنګ د افغانستان مهمي ژبي پښتو او دري هم زده کړي، د هغوی ځینو ملکي او نظامي مامورانو زموږ د هیواد د ژبو او فرهنګ مطالعه وکړه، فرهنګونه، ګرامرونه ئې ولیکل، لرغوني متون او اثار ئې په غربي ژبو وژباړل، په تاریخ، فولکلور، جغرافیه او نورو برخو کي ئې هم څېړني وکړې. یو انګریز چي بېلف نومېږي، د پښتو ژبي د زده کړي په اړه وایي: پښتانه ځانته خپل خاص عنعنات لري، دغه عنعنات له نورو قومونو سره توپیر لري او زموږ د ختیځو ځمکو د استعمار په لړۍ کي د دوی او انګریزانو تر منځ جلا او ځانګړی ارتباط موجود دئ، د دوی د خاوري د اشغال په پروسه کي ډېري جګړې زموږ په تاریخ کي ثبت دي نو ځکه زه د دې ژبي زده کړه ضروري بولم، هر انګرېز، هر هندي نظامي، ملکي انګرېز ته د دې خاوري د ژبې او ادب پېژندنه لازم ده[1]. نو هماغه وو، چي په لر او بر افغان وطن کي ځینو پښتنو بهرنیانو یا د دویمي ژبي ویونکو ته د ژبي لارښودي اثار ولیکل، چي له ډلي ئې عظیم الشاه خیال بخاري، اتالیق پښتو ، بهادرشاه ظفرکاکاخېل رهنمای پشتو، حافظ محمد ادریس او عبدالحلیم اثر او ځینو نورو په اردو ژبه د پښتو ژبي د زده کړي ابتدایي لارښودي اثار ولیکل. مولوي نور محمد د

تحفه الامیر په نامه او ځینو نور په دري ژبه د پښتو ژبې د زده کړې لارښودي اثار ولیکل.

اروابناد پوهاند حبیب الله تږي او باربرا رابنسون a reference grammar of Pashto، قاضي رحیم الله introduction to Pashto منشي احمد جان how to speak Pashto او ځینو نورو په انګریزي ژبه ولیکل او له دې سره په څنګ کې پخپله ځینو بهرنیانو لکه، هربرت پنزل، راورټي، ګریرسن او ځینو نورو په انګلیسي ژبه، پروفیسور ډورن او پورفیسور لیبیدیف په روسي ژبه، ډار مستېټر، ګایګر، مورګنستېرن او بن وینست په الماني، انګلیسي او فرانسوي ژبو د پښتو ژبې د زده کړې لارښودي اثار یا ګرامرونه ولیکل. زما د معلوماتو له مخې بهرنیانو ته د پښتو ژبې د زده کړې په برخه کې وروستی اثر اوس اوس ډاکټر صاحب خالق رشید لیکلی، چې پښتو د خارجیانو له پاره نومېږي، په ډیلي کې د افغانستان سفارت چاپ کړی دئ. له دې لنډې تاریخي مخینې څخه څرګنده شوه، چې نږدې شاوخوا درې پېړۍ وشوې، چې په پښتو ژبه کې د بهرنیانو له پاره په بېلابېلو مهالونو کې څه ناڅه هڅې شوي، د یادو هڅو په پایله کې ډېرو بهرنیانو پښتو ژبه زده کړه، په پښتو ژبه ئې خورا مهم اثار ولیکل، چې دغه اثار نن سبا د پښتو ادب، پښتنو او د پښتو ژبې په اړه د څېړونکو له پاره ارزښتمن ماخذونه دي.

له دغو ټولو هڅو سره سره له بده مرغه مور په دې و نه توانېدو چې بهرنیانو ته د پښتو ژبې د زده کړې یو ټولمنلی، علمي او اکاډمیک، سیستماتیک نصاب برابر کړو. همدغه وجه ده، چې لا هم بهرنیان د پښتو ژبې د زده کړې په برخه کې له ستونزو سره مخامخ دي، پښتو ژبه سمه نه شي زده کولای. په پښتو ژبه کې د بهرنیانو له پاره لیکل شوو اثارو په ټوله کې ځیني نیمګړتیاوې درلودې، چې دلته ورته اشاره کوو:

- ځینو ئې ډېر ابتدایي جوړښت درلوده، چې په بشپړ ډول ترې ژبه نه شوای زده کېدای.
- ځیني د پښتو ګرامر په یوه ځانګړې برخه، لکه فعل، ضمیر، جمله او د نورو برخو په اړه لیکل شوي ول.
- ځیني د پښتو ژبې د یوه ځانګړي ګړدود په اړه لیکل شوي ول.
- ځیني د پښتو ژبې په بېلابېلو ګړدونو لکه کندهاري، پېښوري او یا نورو لیکل شوي، چې بهرنیانو ته ئې د زده کړې په برخه کې د لهجوي توپیر ستونزې راولاړولې یاني یو نسبي معیار پکښې په پام کې نه وو نیول شوی.
- د ژبې د زده کړې سیستماتیکه زده کړه پکښې په پام کې نه وه نیول شوې.
- د پښتو ژبې ډېرې لومړني ګرامرونه یا د ژبې د زده کړې

لاړښودونه د عربي ژبې په ښېښو لیکل شوي ول، چې په سمه توګه ئې د پښتو ژبې ژبنی جوړښت نه شو بیانولای او له دې سره په څنګ کې ئې ځیني نورې ستونزې هم درلودې.

هر نوی کار له ګڼو ستونزو او نیمګړتیاوو سره مل وي، بهرنیانو ته د پښتو ژبې د زده کړې په برخه کې په پښتو ژبه کې شوی پخوانی کار هم ستونزې درلودې، نو څه کول په کار دي، چې د مورنۍ ژبې په برخه کې دا د څو پېړیو تکرارېدونکې ستونزه د وخت له غوښتنو سره سم پای ته ورسوو، په دې برخه کې ځیني وړاندیزونه لرم، غواړم له تاسو سره ئې شریک کړم، البته که د پوهانو تر منځ په دې اړه علمي بحث کېږي، بنایي نور ډېر غوره وړاندیزونه هم وشي، چې دا هڅه به ورسره لا پیاوړې شي.

وړاندیزونه:

- ✓ د لرو او برو پښتنو ژبپوهانو په مشوره دې بهرنیانو ته د پښتو ژبې د زده کړې یو داسې نصاب رامنځته شي، چې د ګړدودیزو او سیمه ییزو ژبنیو توپیرونو موضوع پکښې نسبتاً حل شوې وي.
- ✓ دا نصاب دې د انګلیسي، عربي او یا نورو پرمختللو ژبو د زده کړې د معاصرو میتودونو په رڼا کې داسې ولیکل شي، چې له بیګنره نیولې ان تر اډاوانس پورې د لوست او تمرین کتابونه ولري.
- ✓ د ژبې د زده کړې د نصاب لیکلو له پاره باید د افغانستان د علومو اکاډمۍ د ژبو او ادبیاتو د مرکز او د پوهنتونو هغه استادان چې په ژبپوهنه کې ئې یا ژبنۍ څېړنې کړې وي او یا د پښتو ژبې د تدریس تجربه ولري وګومارل شي.
- ✓ د ژبې په زده کړه کې د لغاتو زېرمه (vocabulary) ډېر مهم رول لري، په کار ده، چې په بېلابېلو برخو کې کوچنۍ کوچنۍ ډېکشنریاني ولیکل شي.
- ✓ د ژبې د زده کړې د درسونو او په بېلابېلو برخو کې دې د دوه وو کسانو د محاوروسې ډیاني ثبت شي.
- ✓ د سفر له پاره دې د هوایي ډګر، بس هډې، هوټل، دوکان، بازار او د نورو هغو ځایونو په اړه چې له یوه بهرني سره په سفر کې د اړتیا پر مهال مرستندوی وي وړې وړې رسالې ولیکل شي.
- ✓ بهرنیانو ته د پښتو ژبې د زده کړې په برخه کې دې دوه ډوله نصاب په پام کې ونیول شي، یو د هغو ژبو د ویونکو له پاره چې له پښتو ژبې سره ئې د لیکدود توري یو شان وي، لکه: دري، اردو، عربي او نورې ژبې او بل دې د هغو ژبو د ویونکو له پاره ولیکل شي چې له مورږ سره ئې د لیکدود توري ورته نه وي، لکه هندي، انګلیسي، روسي او نورې ژبې. ځکه که یوه هندي یا انګرېز ته پښتو ژبه ورزده کوو، نو د ز، ذ، ظ، ض او پښتو ځیم لپاره چې په انګریزي کې یوازې z کارول د تدریس او زده کړې مسئله ستونزمنه کوي، چې همدغه

ډول ستونزه د ځ، ص، س، ث، د ح او هـ په برخه کې شته.

- که د نورو ژبو د ویونکو له پاره د ژبې د زده کړې لارښود لیکل ګران وي، نو د درې، اردو، عربي او اردو ژبو له پاره د لیکلو په برخه کې له مالي ستونزو پرته نور هیڅ ستونزه نشته، موږ په لره او بره پښتونخوا کې کافي اندازه داسې پوهان لرو، چې د درې، اردو، عربي او د انګلیسي ژبې ویونکو ته د ژبې د زده کړې لارښود ولیکي او نور ممد مواد برابر کړي.
- هغه پښتو کتابونه چې پوهني وزارت د دویمې ژبې د ویونکو له پاره لیکلي د ژبې د زده کړې له میتودونو سره برابر نه دي، ځکه خو یو دري ژبی یا د هیواد د بلې ژبې ویونکی په دوولسو کالو کې هم پښتو ژبه سمه نه شي زده کولای، باید د ابتدایه دورې له پاره داسې ولیکل شي، چې یوازې ژبه پکښې زده شي.
- بهرنیانو ته د ژبې د زده کړې د یوه واحد ژبني لارښود د میتودونو له مخې د هرې ژبې له پاره لارښود لیکل کېږي، یوازې لومړنی هڅه به ستونزمنه وي. که موږ د یوې ژبې له پاره یو لارښود برابر کړو، نو کولای شو یوازې په سافټ کې ئې په اسانی سره نورو ژبو ته بدلولای شو.
- زموږ په پوهنتونو کې پخوا هم خینو بهرنیانو پښتو ژبه زده کړې، که دا لړۍ بیا پیل شي، نو په یقین سره چې ډېر بهرنیان به د پښتو ژبې له زده کړې سره لېوالتیا وښیي.
- په سیمه کې هغه هېوادونه چې له پخوا راهیسې پکښې د پښتو ژبې د زده کړې کورسونه یا ځوکی شته باید له هغوی سره هر اړخیزې اړیکې ټینګې شي، د ژبې د زده کړې نوي لیکل شوي لارښودونه ورواستول شي او که شونې وي د پښتو ژبې د زده کړې د دغو کورسونو د اخرې سمستر محصلینو ته باید موږ د خپلو پوهنتونو په پښتو څانګو کې د زده کړې زمینه برابره کړو.

۱ – بېدلف: د اووه لسمي پېړۍ پښتو شاعري. شېرمحمد کریمي ژباړه: د زیري کالنی، پښتنو ټولنه، دولتي مطبعه، ۱۳۶۳ هـ ل کال ګڼه، ۹۷ مخ.

***

ټولوونکی: حاجي محمد رزمي

## ګل خبرې

- د هغه چا د لاسه چې اشتباه نه خېژي د هغه له لاسه هیڅ شي هم نه خېژي.
- هغه کار چې ته ئې نه سې کولای مه پرېږده هغه څه اخلال کړي چې ته ئې کولای سې.
- ملګرتیا پناه ورکوونکې درخته ده.
- د بحث د ګټلو هنر مقابل لوري ته په غوږ نیولو کي دئ که څه هم ستا مخالف وي.
- د نارینه له پاره لویه شتنمي خواخوږې ماندینه ده.
- بې امیده پیاوړتیا امکان نه لري.



لیکوال: محمدمقصود ضمیر

# کندهار او اوسني مطبوعات

دا خبره چي: "زیات کار ته اړتیا لرو" کېدای سي کلیشه وي، خو ما د مطبوعاتو په برخه کي چنداني نه ده اورېدلې. په رښتیا سره موږ د نورو برخو تر څنګ د مطبوعاتو او رسنیو په برخه کي "زیات مسلکي کار ته اړتیا لرو". دا کار په لوی سر (مرکز) کي یو څه، خو سیمه ایزه کچه ښېخي نه دئ سوی؛ ځکه په هیواد کي څورلس کاله وړاندي د نظام په راتګ سره د مطبوعاتو او رسنیو لوري ته د مرسته کوونکو هیوادونو، چي په سر کي ئې امریکا راځي د بېلابېلو علتونو په ځانګړې توګه سره د ډیموکراسۍ د اساسي اصل، بیان ازادۍ له مخي زیات پام وکړ. له ۲۰۱۴ کال له پای ته رسېدو وروسته د مرستو له کښمت سره اوس ورځ تر بلي مرسته کوونکي اداري د مطبوعاتي ادارو د مالي ملاتړ کووني لاس اخلي او ورسره تر څنګ ئې هغه مطبوعاتي اداري بندېږي، چي یوازي ئې پر مرستو تکیه وله.

د هیواد په کچه ښېخي کمي مطبوعاتي اداري، چي د ګوتو شمېر نه پوره کوي (ورځپاني، اونېزي، میاشتنۍ، مجلې) د مرستو له درېدو سره ـ سره سم فعالیت لري. په ښکاره توګه سره دا جرئت ځان ته نه ورکوم، چي ووایم: "د مطبوعاتو او رسنیو په برخه کي مرستي په افغانستان کي مطبوعات تقویه کړل، که ئې د پیسو پېدا کېدو وسیله کړه؟" ځکه په دې ډول سره په مطبوعاتو کي معنویت او مسلکیتوب له منځه وړل سوی وو او ټوله تکیه پر مرستو وله.

اوس موږ زیات وخت ته اړتیا لرو، چي مطبوعات کرار ـ کرار له مادي ګټي ځخه وباسو، څو معنوی او ټولنیز ارزښتونه په خوندي کړو، خو دا کار به د څو کلونو وخت تر څنګ غښتلي فکري او مسلکي کسان

وغوارې، چې د دوی تشه په راتلونکي کې مسلکي د روزنو ادارو ته په کتلو سره ښځې نه ليدل کېږي. دا مهال ان ملي ورځپاڼې هم پر "کاپي او پېسټ" کمه تکيه لري، خو په کندهار کې بيا ځينې اونيزې ښځې خبريال نه لري او يوازې ئې دې ته ګونډې کټ کړي وي، چې له کومه ځايه ئې "کاپي" او په کوم ځای ئې "پېسټ" کړي، خو اونيزه ئې رنګه او پر ښځې ښه کاغذ چاپېږي، چې مسلکي کس به ښځې فکر ورته يوسي، چې نو دونده مصرف د څه له پاره؟

په هيواد او په ځانګړې توګه اوس په کندهار کې د ورځپاڼې لوستلو کلتور ښځې کم دئ. له ورځپاڼې او مطالعې سره نه لېوالتيا د وروسته پاته ټولنو داسې عادت وي، چې سړی به وايي دا عادت ئې په ختِه اخښل سوی دئ. خو کندهار کې دا عادت مخکې نه وو. وايي، چې "د ارامۍ په وختونو کې چې به طلوع افغان ورځپاڼه يا اونېزه او نورې خپروني چاپ سوې مخکې ته به نه پاتېدې". نو په کندهار کې بيا ولې اوس دا جال دود دونده کم سوی دئ؟ لومړی خو ښځې خلګ د ورځپاڼې يا مجلې له پاره انتظار نه باسي او که ئې دکان او يا هم پر لاره ورځپاڼه خرڅونکی ورته درېږي فکر به کوې، چې ورځپاڼه خرڅونکی په زور پيسې ځني اخلي. د مخکنۍ لېوالتيا او اوسنۍ نه لېوالتيا علت په چا کې دئ؟

که د طلوع افغان ورځپاڼې يا اونيزې له پيل څخه تر هغو کلونو پورې، چې په هيواد کې امن وو امان وو (د نظام له پاره يو فکر او له خلګو سره يوه عقيده وه) په اړه مطالعه وکړو دا ورځپاڼه يا اونېزه د موادو له لحاظه دونده قوي وه، چې اوس ئې پرتله په سيمه ايزه کچه د بلې ورځپاڼې سره نه سو کولای. د دې خپروني د وخت مسئول مديران په رښتيا سره په ذهن پاخه او په مطالعه ماړه خلګ ول؛ نو له همدې کبله ورته د مسلک ارزښتونه او د خلګو خويونه مالوم ول، چې خپرونو ئې د مخکې مخ نه ليدئ ان يوه ګڼه به څو ځلو هم مطالعه کوله.

د وخت خپروني په ځانګړې توګه طلوع افغان ورځپاڼه لوستونکو ته د مهربانه ښوونکي په څېر وه، چې هره خبره به ورته رښتيا او هر مخ به ئې په ژوند کې د پرمختګ او ښېرازۍ راز پرانستئ. تاسو د طلوع د ښه وړاندې کلونو ګڼې وګورئ طلوع څه خپرول او له کومه ئې کول. خو اوس بيا هيڅ يوه ورځپاڼه له هغه معيارونو سره نه برابره هغوی يوازې ډېر تېنګار په غير ارادي توګه د ژړ ژورناليزم (Yellow Journalism) تر تاثير لاندې د لومړی مخ پر رنګارنګ کېدو کوي او مطالبو ته کوم پام نه کوي او تر ډېره پورې ئې تکيه پر (کاپي او پېسټ) وي. په داسې حالاتو کې نو ولې خلګ د دې ورځپاڼو رانيولو ته زړه ښه کړي!

يوه او دوې ورځپاڼې نو ته مه ښيه، چې د لوستلو له پاره ګوزاره کوي. استاد محمدمعصوم هوتک له څلوېښتو کالو له تاريخي پېښو څخه د زده کړې د سمينار له پاره په وينا کې وويل: "مور، نيمه پېړۍ وړاندې په کندهار کې مکتب تجار درلود. له دغه غير پښتو نامه مکتب څخه علامه حبيبي

او علامه رشاد، مولوي محمد ويس کاکړ او عبدالرحيم هاتف راووتل، کله چې مو پوهنځی، فاکولته او ښوونځی، مکتب باله، پښتانه تر نن ورځ څو چنده پکښې زيات ول".

دا خبري مي تر همدې پوري وکړې؛ که نن په کندهار کي چاپي خپروني زياتي لرو او د يوې ښې ورځپاڼي تنده مو نه سي ماتولای، نو بهتره نه دي "کمي رسنۍ له ښو مسلکي ظرفيتونو سره؟" بې له شکه ناخوالو به خلګ ذهني نا ارامه کړي وي. ورځپاڼه نه لولي او اخستلو ته ئې زړه نه ښه کوي، خو دې ټکي ته هم پام په کار دئ، چې رسنۍ مو د خلګو د زړونو مطابق مطالب هم نه خپروي. هغه رسنۍ، چې په تقريبي ډول تر نورو ښه دي مينه وال ئې هم د دوی د زحمت په اندازه زيات دي.

## وچ کلک خبرونه:

دا نظر اوس تر ډېره پوري له ذهنه وتلی دئ، چې خلګ دي ورځپاڼه يوازي په رنګارنګ تصويرونو سره رانيسي او مطالب دي هيڅ زړه راکښون و نه لري. په نړۍ کي زياتي داسي ورځپاڼي سته، چي تېراژ (چاپ شمېر) ئې تر ميليون اوړي او د ورځي دوهم ځلي چاپ ته ئې ضرورت پېښېږي. هيڅ داسي ورځپاڼه، چي وچ کلک خبرونه ولري، ځانګړي مينه وال نه لري؛ ځکه هغوی په هره بله ورځپاڼه کي دا خبرونه پيدا کولای سي او ضرورت نسته د يوې ورځپاڼي له پاره انتظار وباسي.

په کندهار کي د سورغر خپرېدونکي اونيزي له (۱۳۸۴هـ کال.) څخه تر يو کال بالا د "چوپ سه چا ته مه وايه" تر سرليک لاندي د ابراهيم سپېڅلي کالم خپراوه. دا کالم ښه وچلېدئ. دوه درې نور کالمونه هم پيل سول، خو د غځېدو مودې ئې لنډي وې. د "چوپ سه چا ته مه وايه" کالم ځيني جملې مي تر اوسه هم په ياد دي لکه: "داسي ويل کېدل، چي امريکا له طيارې څخه هر څه ويني. که تر پله لاندي موټر ولاړ وي موټر به وولي، خو پُل به هم تخريب نه سي. نو؛ بيا ودونه ولي بمبارېږي". ماا و زما ملګرو په هغه وخت کي دا اونيزه حتماً پيدا کول او لوستل مو، خو د بلي هيڅ اونيزي او ورځپاڼي له پاره مي انتظار نه دئ استلی. نو د کالم ليکونکو دا خبره راته رښتيا ثابتېږي، چي وای: "کالم دئ چي يوه ورځپاڼه تل ژوندۍ ساتي". مګر بلي هيڅ يوې چاپي خپروني کالم نه دئ خپور کړی او که ئې خپور کړي وي نو؛ ليکوال به ئې د کندهار نه وي. چي کله ئې ليکوال د کندهار نه سو، ښکاره خبره ده، چي د سيمي د خلګو د درد په اړه نه ږغيږي. په پښتو کي په تقريبي ډول کالم له (۱۹۲۸م کال.) راهيسي دود سوی دئ، خو تر هغه مخکي اردو ژبي کالم درلودئ. مګر د کندهار اوسنيو خبريالان ولي د خپلي سيمي د مخکني سياسي، فرهنګي او مطبوعاتي عظمت په درلودلو ځان له سيال سره سيال نه کړ، چي کالم ليکل ئې مثال ياد کړو.

## د کمال ټکي:

د نړۍ هيڅ مشهوره ورځپاڼه پر وچو کلکو خبرونو (دوی حمله وکړه، مړه سول،

زخمي سول، چارواکي وای) تکیه نه کوي؛ بلکي هغوی هره ورځ له زیاتو خبرونو څخه د خپل لید لوري دوه درې خبرونه ټاکي او نوره ورځپاڼه په بېلابېلو خبري سټوریانو، تبصرو، خوندورو کالمونو او نورو مطالبو سره پوره کوي، په هر مطلب کي د خلکو غوښتنو او پوښتنو ته ځوابونه وایي او په دې سره دولتي اداره او چارواکي لړزوي؛ ځکه نو لوستونکي پر رامات دي. دلته کندهار کي دا مهال ځیني چاپي خپروني د اوسني وخت د ژورنالیزم د غوښتنو سره سم خبري سټوریو، تبصرو او کالمونو د نه لرلو تر څنګ سرمقاله هم نه ورته لیکل کېږي. اوس په سیمه کي ډېر ورځپاڼه لیکونکي په دې عقیده سوي دي، چي بې له پروژې څخه د ورځپاڼي، اونیزي او یا هم بلې خپروني مخته بېول نا ممکن کار دئ. په داسي حال کي، چي دوی د یوې ښې ورځپاڼي له مطالبو څخه هیڅ هم نه لري او نه هم کوښښ کوي، چي په دې برخه کي د مسلکي کسانو په جذب سره دي دا معیارونه حاصل کړي.

اړتیا ده، ورځپاڼه او بله هره رسنۍ لومړی لوستونکي او لیدونکي ځان ته جذب کړي او تر هغه ورسته بیا د خپروني د خرڅلاو او اعلاناتو له پیسو څخه د خپلو لګښتونو د پوره کولو توقع وکړي. خو زه بیا په دې باور یم، چي هیڅ یوه پرمختللې ورځپاڼه پروژه نه ده. څو کاله مخکي ۲۰۰۷ کال وو، چي د خپل یوه ملګري سره د پایواز په توګه سره کوټي ښار ته تللی وم. ملګري مي د ریحان په نوم یوه شخصي روغتون کي بستر وو. زه د روغتون په دوهم منزل کي د شپې تر ناوخته پوري یوازي ناست وم له هغه ځایه مي په هینداره کي یو بل دفتر لیدئ. هورې ځیني کسان کمپیوټرانو ته ناست او په کار اخته ول. پوښتنه راته پیدا سوه، چي دوی څه کار کوي، چي تر دونده ډېره پوري اخته دي. بالاخره د ملګري د حال پوښتني له پاره نرس راغلی او پوښتنه مي ځني وکړه، چي هغه د فتر د څه شي دئ؟ده راته وویل: دا د ورځپاڼي د فتر دئ. خو دا پوښتنه مي نه ځني وکړه، چي کومه ورځپاڼه ده. زه بیده سوم خو دوی لا کار کاوه. دلته کندهار کي ما بېخي د ډېرو داسي ورځپاڼو لیکونکي لیدلي دي، چي مازیګر وختي او یا هم د ماښام تر اذانونو پوري کار خلاص کي او د عامو خلکو په څېر کور ته ځي او خوب کوي که د شپې هر څه پېښ سول د ده ئې د بلا سبا سهار نو؛ هغه ورځپاڼه خلګ څه کوي، چي وچ کلک خبرونه ئې تېر ۲۴ ساعتونو راډیو ګانو په ډېرو ویلو شوړولي وي. یو ه عامه اصلاح ده وای: "د هغه ملا په خبره کي به څه تاثیر وي، چي عمل ورسره نه لري". نو که په همدې ورځپاڼه کي پر هغه ډاکټر نیوکه کېږي، چي د شپې سمه نوکري نه کوي ـ پولیس سمه ګزمه نه کوي، پلانکی او پستانکی داسي نه کوي؛ نو خبره کي به ئې څه تاثیر وي، چي دی خپله د شپې کار ناسم لا څه بېخي ئې نه تر سره کوي.

ما له هغه وخت څخه هم مخکي دا دعاوي کولې، چي یو وخت به داسي هم راسي، چي زموږ مطبوعات دي بیا تر پاکستاني هغه ښه او مسلکي سي. تر اوسه پوري خو ناامیده وم؛ مګر د راتلونکي له پاره

په دې سیمه کې د مطبوعاتو د پاللو له پاره زما
په اند له ځینو ځوانانو څخه امیدونه لیدل
کېږي، خو تر هغه وخته پورې لا نه، چې اړیکه
لرونکي کسان د مطبوعاتو په ډگر کې پروژو ته
غلي ناست وي او هیڅ اصولو ته د ژمنتیا تمه
ځنې نه سي کېدای.

د ۲۰۱۴ کال په پیل کې په کندهار کې د
یوې نوې پیلېدونکې اونیزې د مسئول
مدیریت له پاره وټاکل سوم. ډېرې هیلې مې
ژوندۍ سوې، چې له همدې ځایه به د ښه
مطبوعاتو په برخه کې کار کوم. په همدې ورځ
مې په خپل مسلک کې له ځینو پوهو سړیو
سره د هیواد دباندي او داخل خبري هم
وکړې، خو د همدې ورځې ماښام ناوخته وو،
چې زنگ راغلی او د هغه د فتر یوه کارمند راته
وویل، چې ستاسو له ملگرو څخه فلانکي زموږ
تمویلوونکي ته زنگ وهلی او ورته ویلي ئې
دي، چې زه ئې تر ده (ضمیر) ۲ سوه ډالره
ارزانه دا وظیفه کوم. هغه وو، چې دا کار سره
وشکېدی، خو دلته د هغه اونیزې په اړه نور
څه نه وایم ... د ژورنالیزم او په ځانگړې توگه
د مطبوعاتو ډگر گړندي او لایق کسان غواړي
هغوی، چې په هره خوا کې پوښتنه ولري، دا
پوښتنه د خلگو بولي او خان او ملگري مسئول
بولي، چې د خلگو د پوښتنو او غوښتنو له پاره
باید ځواب پیدا کړي. هغه کسان، چې د
مطبوعاتو په برخه کې پروژې عملي کوي تر
هغه وخته به ئې ښه وخوري، چې څو ئې
تمویل کوونکي وي، خو هغه کسان چې
مطبوعات ئې د خپل مسلک په توگه گرځولي
وي؛ هغوی د مسلک، خلگو او د ټولنې ټولو
معنوي او مالي ارزښتونو ته وفادار خلگ دي او
خدای به کوي دوی به کوي، چې په دې
سیمه (لوی کندهار) کې به دا مسلک رښتنی
ثابتوي. غوښتنه مې همدا ده، چې پیسه
خوښوونکي دې د هیواد او خلگو په خاطر له
دې سپېڅلي مسلک څخه لاس واخلي او
مسلکي خواخوږو ته دې پرېږدي، څو دا
مسلک په کرار ـ کراره سره په کندهار کې د
بریا او مسلکیتوب لوري ته بوزي.

د مطبوعاتو او رسنیو مسئولین باید
ژورنالیزم ته د مسلک په توگه احترام وکړي، د
خوښې، ذوق او علاقې پر بینا نه.

د مطبوعاتو او رسنیو مسئول دې
ایډیټران د ژورنالیزم مسلکي او په ژبه کې د
وړتیا په اساس وټاکي.

هغه ځوانانو ته دې د ژورنالیزم په برخه
کې د کار لومړیتوب ورکړه سي، چې مسلکي
وي؛ نه دا چې د ژورنالیزم سره علاقه ولري؛
ځکه علاقه والا کسان، چې زړه وي تر هغه
وخت پورې کار کوي.

ژورنالیزم د پېسو مسلک نه دئ او نه دې
هم څوک د دې غوښتنې د پوره کېدو له پاره
ژورنالیزم ټاکي.

که چیري یادو ټکو ته پام و نه سي، فکر
نه کیږي چې په راتلونکي کې د ښو مطبوعاتو
درلودونکي سو. په دې برخه کې د "کندهار
کلتوري مرکې" غوندي منل سوي کلتوري
بنسټونه کولای سي، د مطبوعاتو او رسنیو د
أصلاحاتو په برخه کې لازمي مشورې وړاندي
کړي. نو هله به ژورنالیزم د څلرمي قوې په
توگه سره په سیمه کې ثابت سوی وي.



پوهیالی محمود مرهون / کابل

# پر څنګه کاغذ څنګه لیکنه؟

د لیکوالۍ کلمه چې په اوسني انګلیسي کې د (Writing) بدیل ده او په عربي کې د (کتابت) په نامه مشهوره ده، یوه خورا د زاړه تاریخ درلودونکې کلمه ده. دا پوهه په لرغوني پېر کې د یوه بشپړ علم په څېر د لغتو، صرفو، نحوې، اشتقاق، معاني او نورو ورته علمونو په څنګ کې د لیکوالۍ (انشاء) تر سر لیک لاندې تدریس او زده کېده.

په دې علم سره به منثور اثار په دقیقه توګه کتل کېدل او په دې سره به کره او کوته اثار بېلېدل، نو پر دې اساس په علم معاني کې دې علم یو خاص باب یا څپرکی درلود چې د انشاء او ډولونو تر سر لیک لاندې به لوستل کېدې.

همدا د لیکوالۍ، کتابت او یا انشاء علم خور ارزښت ناک شمارل سوی او په دې اړخ کې بېلابېل اثار په بېلابېلو وختو کې د بېلابېلو کسانو له خوا را منځته سوي او د وخت او زمان سره مناسبي لارښووني او د انشاء اړخونه پکښې څېړل سوي دي.

دا یوه ښکاره خبره ده چې هره هغه لیکنه چې د انشایي او املایي تېروتنو څخه خلاصه وي او لوستونکی په هغه کې د لوستني پر وخت تلولی او تېر نه وزي، له صرفي او نحوي اړخه جوړه وي، روانه او ساده وي، چې ایهام او اغلاق هغه محدوده کړې نه وي، نو هغه لیکنه خپل یو خاص ارزښت لري او موږ هغې لیکني ته یوه معیاري، کره او رسا لیکنه ویلای سو.

نو پر دې اساس د دغه علم د عالمانو یا په اوسنی وخت کې (چې دا علم په یوه هنر اوښتی) د هنرمنانو له خوا ځیني اصول او قواعد وضعه سوي دي، چې د هغو په مرسته سره موږ کولای سو خپله لیکنه په ښه توګه او له نیوکو خلاصه و لیکو، چې هغه پر دریو برخو وېشل کېږي چې هر یو ئې بیا ځان ځان ته

څېړنه او شننه لري چي نومونه ئې په لاندي توګه دي:
۱. املا یا د کلمو په سمه توګه لیکل.
۲. د جملو، فقرو، پارګرافو او ... و نخښه ایښودني ته پاملرنه.
۳. د لیکوالۍ اساسات.
په دې کوچنۍ لیکنه کي موږ پر دې بحث کوو، چي د لیکني په وخت کي موږ څنګه کاغذ وټاکو؟ لیکنه له کومه خایه پیل کړو، پاراګراپونه څنګه ولیکو او نور.
۱. لومړۍ مسئله چي په یوه لیکنه کي خورا مهمه ده هغه د سرلیک لیکل دي. سرلیک باید تر عادي لیک لوی په اوږدو د پاڼي په سر کي او په بره د پاڼي په منځ کي له پورته خوا څخه یو اینچ یا دوې سانتۍ کښته ولیکل سي.
۲. لومړۍ کرښه باید له سرلیک څخه یو اینچ یا دوې سانتۍ کښته و لیکل سي او لومړی پارګراپ باید د نور پارګراپونو پر خلاف د کرښې له سره پیل سي مګر نور پارګراپونه باید له پیل څخه څلور یا اووه سانتۍ لیري پیل کړل سي.
۳. د پاڼي څلورو خواوو ته باید حاشیه یا د څنډ لیکونو له پاره ځای پرېښودل سي، نور ټول اړخونه یا حاشیې باید دوه سانتي متره وي خو د سر حاشیه باید یوه نیمه سانتي متره وي.
او یا یو بله ښه اندازه چي ځوک په تشویش کي وا نه چوي داسي ښودلای سو چي د هري پاڼي بر څلور اینچه او اوږده ئې پاوبالا اووه اینچه جوړ کړل سي، خو دغه اندازه یوازي د یوې غټي سپیني پاڼي(ای څلور) نیمایي (اې پنځه) له پاره ده او د اې څلور (وزیري قات)پاڼي اوږده اتنیم اینچه او بر ئې پنځنیم اینچه باید وي.
۴. د مکتوبونو، غوښتنلیکونو، وړاندیزونو، امرونو او نورو ټولو پاڼو په اړه لازمه ده چي د هغو د حاشیو جوړښت په داسي توګه په نظر کي ونیول سي چي په دوسیه کي د ایښودلو په وخت کي ئې کوم مشکل منځ ته را نه سي، یعني داسي و نه سي چي د پاڼي د سوري کولو په وخت کي د پاڼو اصلي متن ته تاوان ورسېږي.
۵. هغه لیکني چي د ورځپاڼو، مجلو، او نیزو او نورو چاپي رسنیو له پاره لیکل کېږي او یا عرض پاڼي، غوښتنلیکونه، وړاندیزونه او امرونه چي په رسمیاتو کي کار ځني اخستل کېږي باید د پاڼي پر یوه مخ ولیکل سي او که چیري لیکنه اوږده کېږي نو باید بیا پر هره پاڼه باندي په پرله پسې توګه شماره ولیکل سي چي د ګډوډۍ او ورک کېدو څخه ئې مخنیوی وسي.
۶. ارام او پاک لیکل د لوستونکو له پاره یو بله خورا مهمه مسئله ده که چیري په لیکنه کي له ښې انشاء یعني لیکني څخه کار وا نه خستل سي او کرښې تېري بېري او کلمې یو له بل سره ومښلي او یا هم حروف په خپل اصلي شکل و نه لیکل سي او یا هم د یوه توري ټکي تر بل لاندي ولیکل سي نو لوستونکي له کړاو سره مخامخ کېدای سي.
۷. د پاڼي پاک ساتل او په دوړو او اوبو نه وهل او یا هم د هغو نه مروړل یوه بله مهمه مسئله ده چي لوستونکي ته خاصه مانا لري او هغه مشهوره متل دئ چي خواړه د لوښي له مخي خوړل کېږي په همدې توګه متن د پاڼي له

مخي لوستل کېږي که پاڼه ښکلې وي لوستونکي يې په لوستلو کي مينه ښيي او که چيري پاکه نه وي تر سر ئې تېروي.

۸. د قلم انتخاب او يا د فونټ انتخاب هم خورا مهمه مسئله ده چي يوه اروا پوهنيزه پديده ئې هم بللای سو يعني داسي قلم بايد و نه کارول سي چي رنګ وپاشي او يا هم توري مات کړي او داسي فونټ هم و نه کارول سي چي لوستونکی خسته کړي.

۹. د ګرامري اساساتو په نظر کي نيول هم ليکني ته خاص ارزښت وربخښي جمله بندي او د صرفي او نحوي اساساتو په نظر کي نيول ليکنه لا خوږه او پخه کوي.

۱۰. اخيرنۍ مسئله نخښه اېښودنه ده، نخښه اېښودنه په يوه ليکنه کي دونه مهمه ده ځونه چي په يوه سندره کي سور او تال مهم وي ځکه د يوې سندري خوند د هغې په وزن، اهنګ او تون کي وي، نو پر دې اساس د يوې ليکني د لوستني له پاره همدا نخښې او نښانې د همدغو درې توکو اهنګ، تون او وزن کار ورکوي، ځکه هره نخښه په خپل ځان کي يو قانون دئ او هر قانون ځان ته يوه مانا لري نو پر دې اساس لوستونکي ته د يوې لوستني په مطالعه د اسانۍ رامنځ ته کوونکې او ليکني ته د اغېزې ورکولو تر ټولو ښه وسايل همدا نخښې او نښانې دي.

د پورتنيو ټکو په پام کي نيولو سره به ستاسي ليکنه له بېلابېلو ستونزو خلاصه سي او هم به تاسي او هم به لوستونکي خوند پر واخلي.

ټولوونکی: حاجي محمد رزمي

## ګل خبري

- په ډک زړه کي د هر شي له پاره ځای سته خو په تش زړه کي د هيڅ شي له پاره ځای نسته.
- د نا ممکن کليمه يوازي د احمقانو په قاموس کي ځای لري.
- هيله د قدرت او بريالیتوب مور ده.
- روښانه زړه ډېر ژوند کوي.
- حکمت له حيرت څخه را زېږي.
- مينه په موسکا سره پيلېږي، په مچولو سره وده کوي او د اوښکو په څاڅکو سره پای ته رسېږي.
- په نړۍ کي يوازي يوه لويه خوښي سته، هغه دا ده چي ته د يو چا سره مينه ولرې او هغه هم ستا سره مينه ولري.
- که غواړې چي ستا همسر او يا همسره په غور ستا خبرو ته غوږ ونيسي او ژوره توجه ورته وکړي نو د خوب په حالت کي خبري کوه.
- يا مينه راسره وکړه او يا هم کرکه را څخه ولره خو د خپلي بې تفاوتۍ څخه مي وساته.
- کله چي په قهر سې تر سلو پوري حساب کوه.
- حتي د زرهاوو کيلو مترو لار هم په لومړي ګام سره پيل کېږي.
- بريالیتوب د هغو کسانو په برخه کيږي چي د ډېر مصروفيت له امله د هغه په هکله فکر نه سي کولای.



بشیراحمد بشارت

# د شهید بابي د شعر انځوریز اړخ

د فنونو د علم یوه ګڼه دا ده چې د تشبیهاتو، استعارو، مجاز او ځینې بدیعي ښکلاوو په مرسته کلام متحرک انځورونه پیدا کوي او دا انځورونه خپله ژبه له بیاني ژبې څخه جلا کوي او کلام ته ژوند ورکوي چې په نتیجه کې لوستونکي او اورېدونکي ځان په هماغه انځور کې ګوري.

د شهید بابي په شعرونو کې د داسې انځورونو سره مخ کېږو:

ماښام غواړي ورته سپین لمر سجده کړي
د شپې کټ باندې بیده کړي آسمانونه
د رڼو ستورو کاروان په ولجه یوسي
پر لمنه د سپوږمۍ کښېږدي داغونه
کهکشان ورته په سرو سترګو کاته کړي
د ارغند په اوبو مینځي وزرونه
د برېښنا غشو پر سد شپه لېونۍ کړه
د تکبیر کاڼي ئې ښاري منزلونه
د ښکلا پښتنه اوښکه به نرګس سي
که بابي کړه ورته پرخه سوغاتونه

د پورته بېلګې یوه مشترکه ځانګړنه دا ده چې حواسو ته مخاطبه ده یعنې ټولې کلمې ئې حسي دي چې اکثره ئې سترګو ته مخاطبې دي او هر بیت ئې یو روڼ انځور ترسیم کړی دئ. د دغسې حسي کلمو انځورونه پر لوستونکي باندې ډېر تاثیر کوي، ځکه چې د هرې کلمې رنګ او جسم ورته له ورایه معلوم دئ او تشخیص ئې ورته آسانه دئ. په پورته بېلګه کې څو ډوله انځورونه وینو:

۱/ د سپین لمر سجده کول، د شپې پر کټ باندې د اسمانونو بیدول، د کهکشان په سرو سترګو کتل، د ارغند په اوبو وزرونه مینځل، په برېښنا باندې شپه لېونۍ کېدل ټوله رانه، عیني او متحرک انځورونه دي چې له جامد حالت څخه راوتلي دي. له بل پلوه د

بر ښښنا غشي، د تکبير کاڼي او د ښکلا ښښتنه اوښکه د اضافي ترکيب له برکته ئې ځيني انځورونه تشکيل کړي دي.

۲/ بر ښښنا او غشي، ښکلا او اوښکه کلمې مادي وجود لري، مګر په ترکيبي شکل ئې ذهني انځورونه چې قابل د لمس نه دي جوړ کړي دي.

۳/ تکبير او کاڼي دواړه عيني کلمې دي، چي له ترکيبي شکل څخه ئې يوه ذهني انځور رامنځته کړی دئ. د دې انځور په څواک سره په لوستونکي باندي د تکبير ږغ اوري. د دغسي ژونديو انځورونو کارونه په هنر کي د دې ضمانت کوي چي هغه له مرګ څخه وژغوري.

يوې بلي بېلګي ته سر ورايسته کوو:

د ګلونو په لــــوست پايي، هـــــره پاڼه ئې جانان سي
پرې شيندي د زړګي ويني، ترېنه جوړ ښکلی بهار کړي
د حجرې ډېوه ســــــــلګی کړي، د روڼا پتنګان ومري
ارمان ژوبل ژوبل پروت وي، د اغيار لاس ئې تار تار کړي

داسي نوي کشفيات او اړيکي د يوه نوښتګر شاعر او هنرمند کار دئ، چي د تخيلي څواک په مرسته ئې داسي نور ارتباطات رامنځته کړي دي. څکه چي د يوه غايب د ګلونو په لوست پايېدل او هري پاڼي ته جانان ويل ئې بيت ته هنري جامه سکښتلې ده چي يوه نوې اړيکه ورته ويلای سو.

په همدې ترتيب د يوې پښتني حجرې ذکر چي يوه ببوسه ډېوه سلګی پکښي وهي بيا هم يو ږغيز انځور رامنځته کړی دئ، چي د ډېوې سلګی په موږ اوري.

د پتنګانو ساه ورکول يو عيني انځور تراشلی دئ او تر څنګ ئې آرمان ته شخصيت ورکول چي ژوبل ژوبل پروت دئ د يوه مظلوم اولس انځور راته ښيي.

راځئ د ږغيزو انځورونو يوه بله بريالۍ بېلګه هم وګورو:

فطــرت د ګلــــو کـــــريږي راته داسي وژباړلي
د ســــــــترګو اوښده به په رنجـــــــو رااړوم
ربابه! د ترنګ ترنګ چيغي که يوسې تر درخو
ويرجـــــن آدم به بيا پر مســــــبدو رااړوم

د هنر د ډېرو ښکلو تر څنګ يوه دا هم ده، چي غيرمحسوس شيان په موږ محسوسوي. دا ارتباطات هغه وخت ښه حسولای سو چي د انځور اجزاوي په منظم ډول اوډل سوي وي او تر ذهني پروسې ورسته زموږ سترګي هغه تشخيص کړي.

د همدې ذهني پروسې په مرسته موږ د ګلو کريږي اورو، چي ګل بصري انځور او کريږي ږغيز انځور دئ. د اضافي ترکيب په موجوديت کي ئې يو ذهني انځور ترسيم کړی دئ. دا کريږي به هغه وخت ښه واورېدلي سي چي فطرت هغه زموږ په ژبه راته وژباړي.

همدارنګه د مخاطب رباب د ترنګ ترنګ چيغي هغه ږغيز انځور دئ، چي د ويرجن آدم پر غم ځپلو شونډو د خوښۍ موسکا راولي.

د اوسنۍ شاعرۍ مهمه غوښتنه همدا ده، چي د نورو شعري ځانګړتياوو تر څنګ هغه ژوندي عناصر پکښي کاروي چي متحرک او بشپړ انځورونه ځني جوړېږي، څکه چي د حسي کلمو تانسته د مانا او ښکلا سره يو ځای يو انځوريز بافت جوړوي.

پای

# هنر او ادب

چلوونکی: پردېس کندهاري

عبدالهادي ملا

## غزل

څه نیمګړي کارسازي ده، چې اسبابو ته ناره سي
که نصیب د سوبې نه وي، ماته زغره زولانه سي

زموږ د ځان بدي په غاړه، چیري وتښتو له ځانه؟
د بچاو امکان ئې نسته، چې دښمنه ئې سایه سي

د مرګ بېره د مرګ تبه، موږ ځانمرګي سودایان یو
د ژوند غم ژوندي وژلي، اجل هسې بهانه سي
د چرسیانو توکل جار سم، دم قدم الله مالک دئ
نه به دا شلګون پوره سي، نه به جوړه ویرانه سي
ستا د سترګو و سینګار ته، ستا د زلفو و هر تار ته
کاشکي زما سترګي رانجه سي، کاشکي زما بانه شانه سي

د ښایست د شهرت ږغ یې، زموږ ګلی قصه خانه کړه
نن شهی پر بام ښکاره سي، سبا جوړه افسانه سي

یو میخوار درو شهید کړ، زوړ ساقي سوګند اوچت کړ
که راج راغی د مستانو، دا مزار به میخانه سي

عبدالهادي ملا

## غزل

یو لمحه د زلفو باد دئ دوږخي غرمه سړه کړي
یو لحظه د شونډو یاد دئ جنتي وږمه خپره کړي

ستا یوه غمزه د سترګو، عمر ټول غزل غزل کړي
ستا یوه څپه د ښکلو، ولاړ غر کوڅه کوڅه کړي

ته چي لاس پیالې ته وروړې، مړه شراب ژوندي نشه سي
ستا کاته د ګل و مخ ته، ګلباغ سترى په سجده سي

چي په ښلر د عقل راسي هوش بېهوش حیرت اوبه سي
پر ناصح واعظ چي ږغ کړي، وچه ژبې خوار پیکه کړي

دا ښایسته دئ که ادا ده، دا قیامت دئ که بلا ده
مړي پاڅوي له قبره، ژوندي سر پر سر چپه کړي

ته ښایست څما د حسن، نوره بنده سوه غزله
خیال ته نولم د زړه ویني، که مي دا مصره پوره کړي

عبدالله ستوری:

## غزل

چي نه جادو نه معجزه نه کرامت دئ ګله
ستا د غزالو سترګو څه دول خاصیت دئ ګله
زموږ د زړو کوتري نیسي د ښو په منګول
ستا د نظر د شاهین دا ظلم عادت دئ ګله
څه بدعتو نه پکښي خامخا موږ هم کړي دي
خو ستا د ښکلي میني دین نور سلامت دئ ګله
ستا د خوږي میني جنت ته اروا ستړي در وړم
ما قبول کړی ستا د میني شهادت دئ ګله
زما د اوښکو وزر ماتي مارغان وتپیدل
ستوري لا کړی ستا ښو ته مقاومت دئ ګله

اسیراحمد یاد

## غزل

زلفو ته شور ورکړه هنر او خیال انځور که پکښي
یوه غزل ولیکه دا کمال انځور که پکښي
له ډېره وخته خزان وړي طوفانو کي یو خو
بهار راوننګوه نوی کال انځور که پکښي
اوس مي زاهده په پیالو باندي زړه نه سړیږي
نن مطرب پیل کړه نن خو سور او تال انځور که پکښي
دې شش محل باندي مي هغه تنده نه ماتیږي
زموږ د کلي هغه خړ دېوال انځور که پکښي
ریباره ورسه حال یې وپوښته چي بېرته راځي
رومال ترې راوړه خو د یاد جمال انځور که پکښي

احمد فاني

## غزل

ستا پر دوو سترګو نظر استعاره ده
یا د مرګ یا د محشر استعاره ده
د عروج او د نیمګړو ارمانونو
لمر لوېده او مازیګر استعاره ده
پاڅېده دي پس له مرګه په واقع کښي
هره شپه او هر سحر استعاره ده
چي غمونه د امید په خوږو مینځي
د حالاتو د هنر استعاره ده
ترکړو لاړو احمد فاني را وروسته
تلل پر سمه، ماهېر استعاره ده

نقیب قریشي

## غزل

نه په زوال کي سته او نه د چا په خیال کي سته
ګراني! اتیا زره صفاته دي په خال کي سته
یوې نجلۍ ساعت کي څو رنګه رنګونه راوړل
دا دي رشتیا سوه چي پنځه فصله په کال کي سته
ستا د یوه واري لیدلو جنتي خوندونه
نه په مسجد کي سته او نه په درمسال کي سته
چي ما له مانه ورک کړي داسي عجیبه کارونه
شیریني! ستا د تورو سترګو په کمال کي سته
د مُلا فکر د مُلا څخه بلا جوړه کړه
څه چي په توره کي سته هغه هم په ډال کي سته
هغه زما زړه ته د کلو راهیسي لار کړې ده
خوار نقیب زما د حرکت په هر جنجال کي سته

خالد ریحان / خوست

## غزل

هر يو چي راځي هر څه په نوم ديوه باديوسي
څه په زندباديوسي او څه په مردباديوسي

داسي شه کابله ستادسوي زړه ازارېسې
خپل دي په سېلاب لاهوشه بل دي خدای په باديوسي
پټي به يې ځومره د پېزوان سيوري ته وساتې
وخت به دي نازکي د پستو شونډو ميعاد يوسي
هغلته شوګير غزل نيمې نيم ښوره پاته شي
بس چي غلبه د سپېدم د خوب دي ياد يوسي
څوک به مي په بزه ګريوان داوښکو تنې تک وهي؟
څوک به مي د شونډو تر کچکول د خولګۍ داد يوسي

داسي بې سواده سترګي واړوي په ناز رانه
داسي په هنر چي د ريحان د زړه سواد يوسي

ثريا حميدي افغان

## غزل

ستا د فولاد غوندي درنه مينه مي زړه کي پاته
اظهار مي نه کړه پښتنه مينه مي زړه کي پاته

د سترګو سيند مي چا دم کړی دئ پر مخ نه راځي
يو سره سکروټه سره لمبه مينه مي زړکي پاته
د زړه خبره مي د زړه په پوښ کي پيرته يوړه
سوم ستا له ښار څخه ستنه مينه مي زړه کي پاته
د راز ويلو د باور وګړي نه لرمه
ځکه يم چوپه همېشه مينه مي زړه کي پاته

زړګی مي سوځي ظاهري وجود مي روغ پاته دي
ثريا زه لکه ډېوه مينه مي زړه کي پاته

محمدعمر ساغر

## غزل

لوګي لوګي غزل مي له جامه ډالي راوړه
ما ييا دا ستا د سترګو له الهامه ډالي راوړه
يو ته وې چي دي مالګي پر زخمونو راشيندلې
يو جنګ وو چي دې خاوري تې بدنامه ډالي راوړه
زما د لاس تږاکو ته هم وګوره ملګرې
و نه وايې چي دا دي څومره خامه ډالي راوړه
تقديره لېوني مي که ازاد مي که چي ورسم
صحرا د خپل وحشت تر اختتامه ډالي راوړه
سپوږمۍ غوندي دي خيال تر غره څلور ګوتي راجګ که
احساس ته مي خاموشه او ګمنامه ډالي راوړه
پياله پياله کيسه تر دروازې وته ساغره
بيګا مي ميکدې ته همکلامه ډالي راوړه

حامد دقيق

## غزل

په ژوند دي پوه کړمه او ښاد دي کړمه
ستا غم مي ولوستی استاد دي کړمه

عجبه دا نه ده چي مخ ته راغلې
عجبه دا ده څنګه ياد دي کړمه
موري قربان او صدقه دي سمه
موري تا ژوند راکړ اباد دي کړمه
په ځان کي ګرځمه خپل ځان لټوم
جنونه خاوري سې برباد دي کړمه

زما و غم ته چي دقيق سوې اشنا
له تاريکيو نه ازاد دي کړمه

رحمت کټوازی

## غزل

هره ورځ مو چم کې څه د کار سړي مري
سهارونه مري او ژړ مازيګري مري
د چنار غوندي ځوانۍ مړې سولې لاړې
ګلابونه مري، بلبل مري پسرلي مري
جنګ مو اوس هم په چم سيوری غوړولی
تيارې زموږ تر کلي راوړي رڼايي مري
سلګۍ ټولي مو په اوښکو بدرګه دي
په هغو پسي مو څاڅي اسوېلي مري
ډېرو هيلو سر تر تورو خاورو يو ووړ
ارمانونه مري له هيلو ډک زړګي مري
په دې لاره کې يوازې نه يې درومه
کاروانونه مري، سالار مري پر لار ځي مري
قاصدان مو اوس خبر تر ياره نه وړي
بس په يو بل پسې دې لاره کې مري مري
د رحمت په دې غزل کې رديف مړ دئ
سوي کړيکي ئې خيالاتو کې راځي مري

ايمل اميدي/زابل

## غزل

له ما پرته په تا څه پوهېږي ياره
ستا په قدر بل څوک نه پوهېږي ياره
ستا په غم باندي غمګين خو په خوښي دي
بس يوازې زما زړه پوهېږي ياره
راته ګوره په ليدو دې نه مړېږم
زما سترګي ستا کاته پوهېږي ياره
ستا د هجر زغمل دومره راته سخت شي
په هغو ومي خوږيده پوهېږي ياره
د خپل حسن تعريف مه کوه و ما ته
اميدي په باندي ښه پوهېږي ياره

فدامحمد اقبال

## غزل

زړه مي په لاس کي ګرځوم رانه سينه ورکه ده
خوبونه ما نه تښتېدلي دي که شپه ورکه ده
له ډېره وخته مي د زړه ځنځير شرنګی نه کوي
له ډېره وخته د زړګي مي دروازه ورکه ده
زه مي هم کله کله بخت په آينه کي ګورم
دېوال ته مخ مي وي له ما مي آينه ورکه ده
کلونه کېږي چي هغه مي لا ليدلې نه ده
زه له هغې ورک يم که ما نه هم هغه ورکه ده
ستا پېغلتوب د لېونتوب تر حد هم واړولم
ځنګه لمونځ وکړي له اقبال ځني کعبه ورکه ده

محبوب مشتاق

## غزل

لکه مړ زه په ژوندو کي څه نه وايم
ستا په بدو او په ښو کي څه نه وايم
بس راګوره او راګوره او راګوره
ستا په غل غل راکتو کي څه نه وايم
زه د عشق په لمبو کي چپه خوله ايثاريم
زه د ميني په لمبو کي څه نه وايم
زلفي نه دي سم ماران دي راغونډ کړي
ګراني نور دي په کمڅو کي څه نه وايم
زه د خپل کور د نېستۍ حال پټ ساتمه
موري زه خو په کوڅو کي څه نه وايم
اې مشتاقه زما د زړونو سره کار دئ
زه د خلکو په رنګو کي څه نه وايم

لیکوال: زنه فین



مترجم: واحد فقیري

# د سقراط تلپاته نظریات

**دوهم کتاب**

**شپږم فصل**

## د یارانو د انتخاب په هکله

یو وخت سقراط او کریتوبولس د یارانو د ازمویلو او دا چې له چا سره اندوالي ښه ده، بحث کاوه. ښایي همدا خبري موږ ته هم په دې باره کې څه را زده کړي. سقراط هغه ته وویل: «که چیري یو وخت موږ د یو یار انتخاب او پیدا کولو ته اړ سوو، موږ باید د کومو شیانو سره احتیاط وکړو؟ ایا موږ باید په یوه داسي چا پسې و نه ګرځو چي عموماً اسراف او عیاش ژوند ته متمایل نه وي، مدام د شرابو نشه نه وي، تل په ښځو پسې لالهانده او ورک نه وي، او نه هم لټ وي؟ ځکه که چیري هغه همدا فسق او پسات ولري، بیا به هغه هیڅکله هم نه د ځان له پاره او نه هم د خپلو ملګرو له پاره ګټور تمام سي». کریتوبولس په جواب کي وویل: «دا درسته خبره ده». سقراط ادامه ورکړه او وې ویل: «که چیري موږ یو داسي کس ولرو چي غواړي ښه ژوند او خاني وکړي، خو داسي ثروت او جایداد نه لري چي د ښه او شتمن ژوند د ارمان مصارف ئې ور پوره کړي؛ بل دا چي همدا کس هره ورځ د خپلو ملګرو په

پیسو خپل کارونه چلوي، او ټول په دې پوهېږي چې هر څه چې هغه ته په قرض ورکوي، ټول بربادېږي. بله خبره دا چې که چیري ته ده ته پیسې ور نه کړې، هغه ستا څخه خوابدی کېږي. ایا ستا په ګومان د داسي سړي د یاري تر لاسه کول به نا مناسب او زیایمن نه وي؟» کریتوبولس په جواب کي وویل: «په دې کي هیڅ شک نسته.» سقراط خپلو خبرو ته ادامه ورکړه: «که چیري یو داسي څوک پیدا کړو چي خپلي پیسې ساتي، خو د نورو خلکو د ثروت د ساتلو له پاره محتاط نه وي، څکه د دغه راز خلکو یوازي یو طرفه معامله خوښېږي. مانا دا چي په اخیستلو کي خورا خوشحاله وي، خو هیڅکله بل چا ته د مرستي لاس نه ورکوي. دا خلک به څرنګه وي؟»

کریتوبولس ورته وویل: «زما په عقیده دا به تر ټولو بد انډیوالان وي. که چیري موږ یو داسي څوک پیدا کړو چي یوازي د ځان د شتمنولو په غم کي وي، او تل په دې سوچ کي وي چي څرنګه د نورو ثروت خپل کړي. موږ باید له دې سړي سره هیڅ کار و نه لرو، څکه داسي څوک به پرته له خپله ځانه د بل هیچا په درد و نه خوري.»

سقراط وویل: «که چیري موږ یو جنجالي څوک پیدا کړو چي هره ورځ خپل ملګري په نوی جنجال، جنګ، او کشمکش کي لتاړوي، د داسي یو چا په مورد کي ستا نظر څه دی؟» کریتوبولس ورته وویل: «له داسي شخصه باید ډېره وسي.» سقراط وویل: «که چیري یو څوک له دې ټولو کمزوری یو څخه پاک وي، مګر یوازي دونه وغواړي چي احسان ور سره وسي، خو د احسان په مقابل کي ئې احسان نه ادا کوي، د داسي یو شخص په باره کي ستا نظر څه دی؟» کریتوبولس په جواب کي وویل: «مناسبه نه ده چي دا ډول کس خپل یار کړو. حقیقت دا دئ چي ما دونه کسان رد کړل چي اوس زه په دې نه پوهېږم چي څوک انتخاب کړم.» سقراط ورته وویل: «موږ باید یو داسي څوک انتخاب کړو چي د پورته ذکر سویو صفاتو او خصلتونو برعکس وي. هغه یو داسي څوک وي چي په سلوک او چلن کي معتدل وي، وعدې ئې پخې وي، او پر وفا او قول ئې حساب کېږي، پخپلو ټولو اعمالو کي صادق وي. او یو داسي کس چي خپل عزت د نورو خلکو په احترام کي لټوي.»

کریتوبولس ترې وپوښتل: «څنګه به موږ د یو چا په ارتباط په دې ټولو شیانو باندي ډاډه او مطمین واوسو، حال دا چي مخکي له مخکي مو نه وي ازمویلی؟» سقراط ورته وویل: «کله چي موږ د مجسمو په باب خپل نظر اظهاروو، موږ د دې هیڅ پروا نه لرو چي مجسمه جوړونکو د خپل ځان په اړه څه نظر درلود. موږ یوازي د هغوي مجسمې ګورو. هغه مجسمه جوړونکی چي ښې مجسمې جوړوي، موږ د هغه په برخه کي ښه نظر لرو. اوس همدا اصل ستا پر هغي پوښتني باندي عملي کړه چي مخکي دي له ما څخه وپوښتله، مګر دا خبره په یاد کي وساته چي هغه چا چي د خپلو پخوانیو یارانو سره وفا کړې ده، لیري نه ده چي هغه به د خپلو ګانده ملګرو سره همدا سلوک او ښه انډیوالي وکړي. نو موږ دا

استنباط کولای سو چي يو مهتر (اس روزونکی) چي پخوا موږ ليدلی وي چي ښه اسان روزي، هغه بايد اوس هم د دې توان ولري چي نور اسان هم ښه وروزي.» کريتوبولس وويل: «کله چي موږ په يوه کس کي همدا صفات چي زموږ خوښيږي وليدل، څرنګه بايد د هغه ياري او دوستي تر لاسه کړو؟» سقراط په جواب کي وويل: «په لومړی سر کی، موږ بايد دا معلومه کړو چي دا کار د خدايانو د تاييد وړ دئ او کنه.» کريتوبولس وويل: «داسي به فرض کړو چي خدايان موږ منع نه کړي، خو سوال دا دئ چي څرنګه به همدا د سروزرو ښکار خپلوو؟»

سقراط ورته وويل: «نه د هغه ښکار غوندي لکه څنګه چي موږ وحشي سويان نيسو. نه د مرغانو غوندي چي موږ ئې په تورونو کي نيسو، نه په زور لکه موږ چي خپل دښمنان نيسو. ځکه دا ډېره ګرانه ده چي د يو چا انډيوالي پرته د هغه له رضا څخه تر لاسه سي، او يا يو څوک په زور له يو کاره راوګرځول سي، او يا هغه بندي او يا مريي کړای سي. ځکه کله چي يو څوک دا ډول سلوک وګوري، هغه دېته اړ کېږي چي زموږ څخه کرکه ولري، نه محبت.»

کريتوبولس سقراط ته وويل: «پس، موږ څه بايد وکړو؟» سقراط ورته وويل، «رپوتونو وايي چي هلته ځيني داسي زورور ذکرونه او منترونه سته چي که چيري څوک هغوی زده کړي، هغوی يوازي د همدې تکو په ويلو سره پر نورو خلکو ګرانيږي، او دغه راز هلته نور داسي طلسمونه هم سته چي د همدې مقصد له پاره دي.» کريتوبولس ورته وويل: «دا کلمات يو څوک چيري په لاس راوړلای سي؟» سقراط ورته وويل: «ايا تا په هومر کي همدا الفاظ نه دي لوستي چيري چي سايريس د يوليسس د مجذوبولو له پاره داسي وويل؟ اغاز ئې داسي وو:

«هې د يونان افتخاره، هې يوليسسه، همدلته پاته سه!»

کريتوبولس په جواب کي وويل: «ته حقيقت وايي، مګر ايا د هغوی د مخنيوي له پاره دوی همدا شيان ها نورو خلکو ته نه وو ويلي؟» سقراط په جواب کي وويل: «هيڅکله نه. دوی په دې کلماتو يوازي هغه سخي او پاک زړونه رابلل چي د تقوا سره ئې عشق لاره.» کريتوبوليس په جواب کي ورته وويل: «زه اوس په تا پوه سوم. ته وايې چي دا کشش او طلسم دونه غښتلی دئ چي دماغونه راجلبولای او خپلولای سي، او هغه پرته له تعريف او تمجيد څخه بل څه نه دي. ستا مطلب دا دئ چي موږ بايد د يو سړي داسي تعريف او ستاينه وکړو چي هغه هيڅکله هم داسي فکر و نه کړي چي موږ ئې غولولو او يا پشلا پر خاندو. ځکه په بل صورت کي، د دې پر ځای چي د هغه دوستي او مينه مو تر لاسه کړې وي، موږ ښايي د هغه دښمني او کرکه ګټلې وي. ځکه دا د يو داسي چا له پاره د زغم نه وي چي په دې ښه پوهيږي چي خوار او کمزوری دئ، خو په ظاهره ئې د قوت، ښې سيکې، ښکلي اندام، او د غښتلي هيکل تعريف او تمجيد کېږي.» دلته کريتوبوليس ترې وپوښتل: «ايا ته په بل کوم طلسم او

جادو باندي خبر يې؟» سقراط ورته وويل، «نه. مګر ما دا هم اورېدلي دي چي د پريکليز ډېر طلسمونه زده ول، او د همدې طلسمونو په سبب ئې د جمهوريت مشرتوب خپل کړی وو، او د ټولو پر ګڼو احترام او رايه ئې ګټلې وه.» کريتوبوليس ورته وويل: «هغه کوم شيان ول چي پريکليز وکړل او د خلګو اعتماد ئې ترلاسه کړ؟» سقراط په جواب کي وويل: «هغه بل طلسم نه لاره، هغه فقط دونه کول چي تل خپل دولت او جمهوريت ته د عالي خدماتو مصدر سي.» کريتوبوليس په جواب کي وويل: «د دې مطلب دا دئ چي که غواړو د عالي انسانانو رفاقت او دوستي تر لاسه کړو، موږ بايد خپل ځان د عالي خدماتو او کارنامو د کولو له پاره چمتو او وقف کړو.»

سقراط خپلو خبرو ته ادامه ورکړه، «ايا ته فکر کوې چي دا به ممکنه وي چي حتی هغه کسان هم کولای سي چي د باکفايته کسانو له رفاقت څخه برخمن سي چي خپله د ښو ارزښتونو څخه يو هم نه لري؟» کريتوبوليس په جواب کي ترې وپوښتل: «ولي نه؟ ما داسي زبون او پرېوتي مبلغين ليدلي دي چي پر خورا مشهورو او محبوبو مبلغينو باندي ګران ول، او داسي کسان مي هم ليدلي دي چي د سترو جنرالانو سره ئې څنګ پر څنګ ژوند کاوه، خو د جنګ په باب ئې هيڅ زده نه ول. » سقراط تپوس ترې وکی: «مګر ايا تا داسي کسان ليدلي دي چي په هيڅ نه پوهېږي او د هيڅ کار له پاره وړتيا نه لري، مګر بيا هم د ښه نامه ياران ولري؟» کريتوبوليس په جواب کي وويل: «زه اعتراف کوم چي ما داسي کسان نه دي ليدلي. مګر لکه څنګه چي د يوه بې ارزښته سړي له پاره دا ناممکنه ده چي د هوښيارو او وتلو خلګو ملګرتيا ترلاسه کړي. اوس دا راته ووايه چي ايا کله چي يو کس د مهارت، وړتيا، او ثروت د حاصلولو کرکتېر په ځان کي وروزي، ايا دا کس به د هغو اشخاصو ياري ترلاسه کړي چي همدا عالي خصوصيات او کرکتېر لري؟» سقراط ورته وويل: «زه ګومان کوم چي د کوم دليل له پاره چي ته دا پوښتنه مطرح کوې، هغه دا ده چي ته مدام د هغو کسانو په مينځ کي اختلافات او مخالف نظرونه اورې چي په تمامه مانا او په يوه اندازه ننګ او غيرت ته وفاداره دي. او ټول به مرګ په ورين تندي ومني، مګر نه دا چي يو ذليل عمل وکړي. ته دې خبري حيران کړی يې چي د دې پر ځای چي ښه يارانه ژوند سره وکړي، دوی مدام د يو بل مخالف وي. او کله کله د هغوی پخلا کول د شريرو خلګو تر پخلا کولو ګران وي.» دلته کريتوبوليس وويل: «همدا يو مصيبت دئ. دا خبره يوازي په ملکي خلګو کي نه ده، بلکي دا اختلافونه کله نا کله د داسي ښو جمهوريتونو تر مينځ، چي تقوا او فضيلتونه پکښي لوړ مقام لري هم وي، او همدا اختلاف هلته نه يوازي د اختلاف بلکي حتی د جنګونو سبب هم کېږي. اوس نو، کله چي زه په دې باب سوچ کومه او دا ملاحظات په ذهن کي رااړوم، زه په دې نه پوهېږم چي په کومو ځايونو د يارانو په لټه کي سم. ځکه لکه څنګه چي موږ پوهېږو چي د شريرو خلګو له پاره دا ناممکنه ده چي پخپل منيځ کي واقعي او رشتينه ياري سره

وپالي. اوس نو، پوښتنه داده چې ایا د ناشکره، د تمبلانو او بېکارانو، د سراښو، د خاینانو، او د لوچګانو تر مینځ به کله هم رشتینه او ابدي انډیوالي ټینګه سي او کنه؟ دا ډول خلګ به مدام د یو بل په مقابل کي کرکه او متقابل سپکاوی لري. نفرت به د دوی د شرارتونو په خاطر وي، او سپکاوی به د هغوی د بد فطرتۍ له کبله وي. همداراز، هیڅکله به هم د یوه متقي او یو شریر کس تر مینځ یاري و نه ګوري. ځکه ځرنګه به د هغه چا چې جنایت کوي او د هغه چا چې له جنایته کرکه لري، یاري وسي؟ مګر څه چې ما ډېر زیات زهیروي هغه، زما ګران سقراطه، دا چې کله وګورم چې متقي او هوښیار خلګ یو بل ځپي، او مدام کوښښ کوي چې د خپل ټول زور او هنر په مټ خپل حریف مات او وکوټي. په تېر بیا، کله چې دواړه د جمهوریت د کوم لوړ او ګټور مقام له پاره کمپېن کوي، او په سیاست کي د مخالفو ګټو او ډلو استازیتوب کوي. زه هیڅ نه سم کولای چې د رقافت او یارۍ د اصولو پر اساس په دې ښکارندې (پدیده، غضنفر؛ مترجم) باندي پوه سم. ځکه زه هر ورځ ګورم چې د منافعو مسایل د ډېرو شریفو او ګرانو اشخاصو په دماغونو کي هم منفي اثر کوي، اوس نو زه په دې کي سخت شک لرم چې ایا په دې دنیا کي په رشتیا هم اصیله او پخه یاري سته او کنه.»

سقراط په جواب کي وویل: «زما ګران ملګرې، دا مسله ډېره پېچلې او نازکه ده. ځکه که چیري زه اشتباه نه کوم، فطرت په انسان کي د رقافت او مخالفت دواړه تخمونه ایښي دي. انډیوالي: له دې کبله چې انسانان یو بل ته ضرورت لري، او عام افت ئې د شفقت احساس راپاروي، د یو بل سره په سختو ساعتونو کي مرسته کوي، او هغوی د دغه احسان په مقابل کي او یو بل ته د مرستي په خاطر له یو بله ممنون وي. د مخالفت او سیالۍ له وجې: ځکه په ژوندانه کي یو یا څو شیانو چې د ډېرو خلګو خوښېږي، د هغوی د حاصلولو له پاره سیالي او رقابت چالانه سي، او هر څوک غواړي چې د دغو شیانو د تر لاسه کولو په منظور د یو بل پلانونه خنثي او بې اثره کړي. نو ځکه قهر، بدي، جنګ، او حرص ډېر سي، او مېړانه او مروت پیکه او هېر سي. بد بیني او کرکه وزېږي. مګر انډیوالي پر دې ټولو مشکلاتو باندي غلبه کوي، او متقي او پاک خلګ یو بل ته سره نژدې کوي، او هم ئې سره متحد وي. ځکه هغوی په ژوندانه کي د تقوا او پاک نفسۍ د اصولو د غوره بللو له پاره دې ته ترجیح ورکوي چې په بدو شرایطو او ناخوالو کي ژوند وکړي، نه دا چې د ټولي دنیا امپراتوري د جنګ او مصبیتونو له لاري تر لاسه کړي. کله چې پر هغوی باندي لوږه او یا تنده غلبه وکړي، هغوی مدام تر هغه وخته پوري زغم او انتظار باسي چې په داسي ډول خپل ضرورت رفع کړي چې هیڅوک په عذاب او تکلیف نه کړي. کله چې د هغوی د میني او شهوت احساس تپانده او وپارېږي، بیا دوی د استدلال، عقل، او حجت په زور پر نفس حاکمېږي، او خپل شهواني تمایلات راایساروي، او هغوی پخپلو ټاکلو حدودو کي ساتي، او هیڅکله دې ته اجازه نه ورکوي چې

دا لذتونو او شهوانې تمایلات هغوی د عالي وظیفې له مهمو اصولو څخه د سرغړونې موجب سي. دوی د هغو شیانو څخه استفاده کوي چې د دوی ملکیت وي، او هیڅکله به د نورو خلګو ملکیتونه او حقوق غضب نه کړي، او حتی د خپل مال او شتمنیو څخه یوه برخه د خلګو په ثروت ګډوي. دوی خپل اختلافات په داسي لارو چارو باندي فیصله کوي چې ټول ګټونکي وي، او هیچا ته د شکایت کولو فرصت برابر نه سي. دوی هیڅکله د قهر او غوسې په وخت کي داسي عمل نه کوي چې بیا وروسته پښېمانه وي او توبې باسي. حسد هغه جذبه او احساس دئ چې هغوی ترې پاک دي، ځکه هغوی د خپلو ملګرو سره له ژوند څخه په ګډه استفاده کوي او پخپل مینځ کي هر څه سره شریکوي، او د یو بل شیان خپل ګڼي. نو په دې ډول، ته وینې چې متقي او پاک خلک د یو بل سره د اختلافونو د درلودلو سره سره، بیا هم هغوی د یو بل سره د جمهوریت په چارو او وظایفو کي مرسته کوي. ځکه هغه خلګ چې حکومتي ماموریت او مقام د ځان د شتمنولو په مقصد غواړي، او نیت ئې کړی وي چې پر پرګنو باندي په استبداد او ظلم راج وچلوي، او یا د دې له پاره چې ثروتمن او هوسا ژوند ولري، هغوی په حقیقت کي نهایت بې انصافه او شریر انسانان وي، او هغوی به هیڅکله هم رشتین او پاخه یاران پیدا نه کړي.

«زه وایم چې ولي باید هغه کسان پخپل مینځ کي سره موافق نه وي چې نیتونه ئې سره یو شان دي؟ او ولي دا خلګ د صلاحیت د درلودلو هڅه نه کوي؟ ځکه د دوی هدف له شریرو خلګو څخه ځان ساتل دي؛ بل مقصد ئې خپلو ملګرو سره مرسته کول دي، او یا وطن ته خدمت کول ئې لوی ارمان وي. ایا د دوی تر مینځ همدا اختلاف د دې له پاره دی چې که چیري یو کس د جمهوریت مسئولیت واخلي، او د هغه سره په حکومت او حکومتوالي کي متقي کسان ملګري وي، هغه به د جمهوریت د خدمت کولو له پاره کم قابلیت ولري؟! که چیري په ټورنمنټونو او نورو لوبو کي دې ته اجازه ورکړه سي چې تر ټولو غښتلي او ماهر په یوه ټیم کي د یوه ضعیف ټیم په مقابل کي سره راغونډ سي، هغوی به مدام لوبې ګټلي وي او ټول انعامونه او تقدیرلیکونه به ئې تر لاسه کړي وي. نو بنا، په سیاست او دولتي چارو کي، څرنګه چې هیڅوک له دې څخه نه دئ منع سوی چې د خپلي خوښي په ډله کي داخل سي، څو جمهوریت ته خدمت وکړي، ایا دا به ډېره واره داره نه وي، کله چې موږ په سیاسي چارو کي برخه اخلو، هله له با عزتو او پاکو خلګو سره انډیوالي ولرو؟ ایا دا به ښه وي چې د هغوی دښمني وګټو، که په عوض کي د هغوی رفاقت تر لاسه کړو؟ ځکه دا خبره واضح او روښانه ده کله چې یو څوک په جنګ کي وي، هغه باید کوم کومکي کس ولري، او که چیري د هغه دښمنان زړه ور او غښتلي وي، هغه مجبوره دی چې ښه زیات کومکیان او ملګري ولري. دغه راز، هغه باید د هغو خلګو سره سخې او خراباتي هم وي چې د ده په پلوي خبري او استدلال کوي، څو هغوی پخپله دفاع کي لا

تشویق کړي. اوس نو، دا کاملاً واضح ده چې دا به ډېره ښه وي چې یو څوک پاک او متقي خلګ د ځان دوستان کړي، که څه هم د هغوی تعداد کم وي، نسبت دې ته چې شریر خلګ پرې راټول وي، که څه هم د هغوی شمېر زیات وي. ځکه ښه خلګ حقیقي یاران وي، او شریر او بد خلګ پله بینه او بې وفا خلک وي.

اوس نو، کریتوبولیس، دا کار چې هر څونه ګران هم وي، بیا هم همت له لاسه مه ورکوه، او تل د متقي کېدو له پاره کوښښ کوه، او هم د باعزته کسانو یاري شپه و ورځ پاله. زه فکر کوم چې په دې برخه کي زه ستا سره څه مرسته کولای سم، ځکه زه فطرتاً د عشق او الفت خوا ته میلان لرم. زه پر خپلو دوستانو باندي کله نا کله حمله کوم، مګر زه تل کوښښ کوم چې د هغوی په راجلبولو کي د خپل ټولو مهارتونو څخه استفاده وکړم. زه غواړم چې د دوی په سرونو کي هغه ډېوې بلې کړم چې زما په دماغ کي روښانه دي، او هڅه کوم چې هغوی زما د مجلس هسي تږي وي لکه زه چې د دوی د لیدو تلوسه لرم. ته په سختو ساعتونو کي یو پوخ ملګري ته اړتیا لرې. ته باید خپل اسرار او د زړه رازونه زما سره شریک کړې، او په دې مې هم خبر کړې چې ته چا ته احترام لرې. ځکه زه تل غواړم چې هغه خلګ خوشحال وساتم چې زما طبع ورسره لګېږي، او خکه زه باور لرم چې زما اوږدې تجربې ما ته د انسانانو او د هغوی د اعمالو په باب ښه پوهه پلاس را کړې ده.»

کریتوبولیس ورته وویل: «زه له ډېره وخته د دې ارمان لرم چې همدا مهارت زده کړم، په تېره بیا، د هغو خلګو یاري تر لاسه کړم چې نه یوازي ښکلي او مېړني وي، بلکي د هغوی ذهنونه او فکرونه هم په هري تقوا سبمال او سینګار وي.» سقراط په جواب کي وویل: «زما طریقه د تشدد او خشونت کارول منع کوي، زما عقیده دا ده چې ګرده خلګ هله له سیکلا څخه وتښتېدل چې کله هورې په زور او ظلم پاته کېدو ته مجبوره کېدل. مګر برعکس په سیرینس کي، د هیچا په مقابل کي له خشونت او تشدد څخه کار نه اخیسته کېده، او یوازي ئې د ښکلیو سندرو په زور هغه خلګ راایسارول.» کریتوبولیس ورته وویل: «اطمنان در کوم چې زه به د هغو خلګو په وړاندي له تشدده کار وا نه خلم چې انډیوالي ئې زما غوښتنه او هیله وي. نو بناءً مهرباني وکړه او د همدې مهارت په رازده کولو کي هیڅ راز ځنډ مه کوه.»

سقراط په جواب کي ورته وویل: «ایا ته به ما ته د دې وعده راکړې چې ته به هغوی ته حتی د یوې مچې په شان څه نه ورکوې؟» کریتوبولیس ورته وویل: «زه ستا سره وعده کومه چې زه به هیچا ته مچه ور نه کړم، مګر دا چې ډېر ښکلی وي!» سقراط په جواب کي وویل: «ته په دې مسئلي کي په اشتباه کي یې. ځکه ښکلي مچو ته چندان شوق نه لري، خو برعکس بدرنګه خلګ ببشماره مچې ورکوي. ځکه هغوی په دې ښه پوهېږي چې که چیري دوی ته د ښکلا او حسن د درلودلو خبره کېږي، هغه به ضرور د نفسي او باطني

ښایست موضوع وي. کریتوبولیس ورته وویل: «زه به په دې باب ستا سره مخالفت و نه کړم، خو دونه وکړه چي ژر تر ژره هغه مهارت ماته راوښیه چي څرنګه نور یاران پیدا کوم.»

سقراط په جواب کي ورته وویل: «کله چي ته د یو چا سره یاري ټینګول غواړې، ته باید ما ته دا اجازه راکړې چي زه هغه ته ووایم چي ته ورته خورا زیات احترام لرې، او دا چي ته غواړې د هغه انډیوال سې.»

کریتوبولیس ورته وویل: «بالکل، او پر دواړو سترګو. ځکه هیڅوک د هغه چا له پاره بد نه غواړي چي احترام ورته لري.» سقراط ورته وویل: «زه به دا هم پر اضافه کړم څرنګه چي ته د هغه لیاقت او قابلیت ته ارزښت قایل یې، نو بناءً د هغه شخصیت ته هم زیات د قدر په سترګه ورګورې. اوس نو، که چیري زه دا کار وکړم، ته خو به بده انتباه نه اخلې؟» کریتوبولیس په جواب کي وویل: «نه، هیڅکله نه. ځکه زه په دې واقف یم چي موږ د هغو خلګو سره ډېر مهربان یو چي زموږ خیر غواړي.» دلته، سقراط وویل: «ایا زه کولای سم چي ستا په مورد کي دا خبري هغو کسانو ته وکړم چي مینه ورسره لرې. او دغه راز، ایا زه کولای سم چي دا هم پر ور اضافه کړم چي ستا د ژوند یوه ستره خوشحالي دا ده چي ښه یاران ولرې. دا چي ته د هغوی په ښه کارونو داسي خوشحال کېږې لکه چي تا خپله کړي وي، او هم دا چي ته د هغوی په نېکمرغي او ثروت داسي خوشحاله کېږې لکه پخپل سعادت او مال چي خوشحاله کېږې، او هم دا چي ته د هغوی د خدمت پر مهال هیڅ ستړیا نه احساسوې، او بالاخره دا چي ته معتقد دې ته ئې چي دا د یو شخص له پاره لوی عزت او افتخار دئ چي په سخاوت او خرابات کي د خپلو یارانو مخکښ وي، او د خپلو یارانو د دښمنانانو په مقابل کي د غیرت او وفا غر وي؟ زه داسي فکر کوم چي ستا له پاره به د ملګرو د پیداکولو په عملیه کي زه ډېر ګټور تمام سم.»

کریتوبولیس ورته وویل: «ولي ته زما اجازې ته ناست یې؟ ته زما په ارتباط د ښو ویلو اجازه بېخي لرې.» سقراط ورته وویل: «نه، زه رشتیا وایم. ځکه زما په یاد دي کله چي یو ځای اسپاسیا وویل هغه خلګ چي د نورو په جوړه کولو کي مهارت لري، هغوی هله موفق وي چي د دواړو خواوو د شخصیتونو په اړه رشتیا وایي. مګر که چیري هغوی درواغ ووایي، هغه جوړه چي له له دې لاري ئې واده سره کړي وی، هغه ازدواج بدمرغه او غمجمن وي. ځکه هغه خلګ چي یو بل وغولوي، هغوی له یو بل څخه کرکه هم پیدا کوي، او له هغه چا څخه خو بیا لا زیات نفرت لري چي دوی ئې له اوله سره جوړه کړي ول. نو بناءً د همدې دلیل په خاطر، زه فکر کوم چي زه باید ستا په تعریف او تمجید کي درواغ و نه وایم.»

کریتوبولیس ورته وویل: «ته خو عجبه یار یې. که چیري زه ښه وړتیاوي او صفات ولرم، ته زما سره مرسته کوې، خو که چیري زه همدا وړتیاوي او مهارتونه و نه لرم، بیا نو ته زما په نفع هیڅ شی نه اختراع کوې.» سقراط ورته وویل: «ته فکر کوې چي زه باید ستا په تعریف او تمجید کي درواغ ووایم، او داسي

شیان ووایم چي په تا کي نسته؟ که چیري ته پدې باب شک لرې، عواقب ئې هم وسنجوه. که چیري زه د یوې کښتۍ خاوند ته ووایم چي ته یو ډېر قابل ماڼو او کپتان ئې، او هغه کم بخته زما د خبري په اساس تا ته د خپلي بېړۍ چلول او اداره درکړي، ته به د ځان د نه تباه کولو په اړه څه اطمینان ولرې؟ او یا که چیري زه په عام محضر کي ووایم چي ته یو ډېر مجرب جنرال یې، او یا یو عالي سیاستوال یې، که چیري ته زما د همدغو درواغجنو تبلیغاتو په اساس، د یوه لوړ دولتي مقام خاوند سې، ایا ته به خپل ځان، دولت، او عامه ژوند د خطرونو سره مخامخ نه کړې؟ او یا که چیري زه یو کس په دې قانع کړم چي ته یو ډېر ښه اقتصاد پوه یې، او له دې وروسته، هغه د خپلي کورنۍ کاروبار او چاري تا ته پلاس درکړي، ایا ته به د هغه جایداد او ثروت برباد نه کړې؟ او ایا ته به خپل ځان و نه شرموې، او د نورو د ملنډو به نه سې؟ په کار ده چي په لنډه توګه ووایم، کریتوبولیسه، په دنیا کي د عزت او ننګ ژوند کولو ته تر ټولو لنډه لاره دا ده چي باطن او ظاهر مو یو وي. که چیري ته ښه ورته ځير سې، ته به دا هم مشاهد کړې چي په رشتین او پاک ژوند کي د انسان تقوا او فضیلت زیاتېږي، غښتلي کېږي، لا ځلېږي. کریتوبولیسه، زما سلامشوره ومنه، او بیا تل هڅه کوه چي همدا کار وکړې، او که چیري ته په دې باره کي بله مفکوره لرې، لطفاً ما خبر که.»

کریتوبولیس په جواب کي ورته وویل: «زه به یو غټ بې شرمه یم چي په دې باره کي ستا سره مخالفت وکړم، ځکه د دې معقول استدلال په مقابل کي د هیڅ معقول مخالف نظر دفاع نه سي کېدلای.» نور بیا ...

×××

ټولوونکی: رزمي

## ګل خبري

- که غواړې کشف کړې چي ستا دښمن د څه شي څخه زیات بېرېږي نو هغو شیانو ته پام کوه چي دي ئې ستا د بېرولو له پاره په کار اچوي.
- یوازي بې غیرته خلک ادعا کوي چي دوی بېره ګرد سره نه پېژني.
- هغه انسان په رشتیا ازاد دئ چي حتی د بې شهرتۍ په وخت کي لا د مصئونیت احساس کوي.
- قهر سړی کوچنی کوي او بخښنه ئې تر اوسني حالت زیات غټوي.
- د نورو په عقل ژوند کول د مرییتوب څخه پرته بل شی نه دئ.
- هیڅکله هغه څه مه هېروه چي یو څوک ئې د قهر په وخت کي درته وایي.
- په اشتباه کولو مه شرمېږه که نه نو بیا هغه په جرم بدلېږي.
- مخکي تر دې چي د انتقام اخستلو فکر وکړې دوه قبرونه وکینده.
- رشتیا ویل ښه پالیسي ده په تېره بیا چي پیسې پکښې وي.
- تر بخښني لوی انتقام نسته.
- زوړ عمر د ژوند تاج او زموږ د ژوند وروستۍ صحنه ده.

لیکوالان: خالد اقبال یاسر او محمد ارشد رازي



مترجم: نثاراحمد آریا

# نوبل جایزه وړونکي ادیبان

## پاول هیس

(Paul Heyse)

(۱۵ مارچ ۱۸۳۰ برلین - ۲اپریل ۱۹۱۴ میونیخ)

**(دیارلسمه برخه)**

پاول هیس د میونخ[1] د لیکوالو د ټولني مشر وو او د ریالیزم مکتب مخالف لیکوال وو. دې پُرکاره لیکوال او شاعر څو شعري مجموعې، شپږ ناولونه، تر شپېټو ډېرې ډرامې او شاوخوا یو سلو شل لنډې کیسې ولیکلې. په (۱۹۱۰م) کې نوبل ادبي جایزه ورکړه سوه. دی لومړنی الماني وو، چې په نوبل جایزه ونازول سو. د نوبل جایزې کمیسیون د نوموړي د هغو خدمتونو ځانګړې یادونه وکړه، چې ده په اروا پوهنه (Psychology) کې د نویو نظریو له لارې ادب ته کړې ول.

هیس د برلن په یوه خوشحاله یهودي کورنۍ کې و زوکېدی. هغه د برلین او بون په پوهنتونو کې کلاسیک ادب ولوست او په (۱۸۵۲م) کې ئې د ډاکټرۍ (Ph.D) سند تر لاسه کړ. په همدې کال نوموړی د یو څېړنیز مرکز په مالي مرسته د یوه کال له پاره ایټالیا ته ولېږل سو. په ایټالیا کې د اوسېدو پر مهال نوموړي د (زړې پرووېنکل) ژبې پر خطي نسخو کار وکړ. په (۱۸۵۴م) کې د بویریا پاچا (دوهم میکسیملین) هغه په مناسب معاش باندې خپل درباري شاعر وټاکی. کله چې نوموړی له مالي اړخه بېغمه سو، نو ئې د دې فُرصت پیدا کړ، چې ناولونه، اوږده نظمونه او مرثیې ولیکي.

د هیس لومړی لنډه کیسه (Der Jungbrunnen) په (۱۸۵۰م) کې چاپ سوه.

---

[1]. د المان یو ښار.

تر دې وروسته ئې تر (۱۸۸۱م) پورې په بېلابېلو وختونو کې ناول او ډرامې چاپېدلې، البته د یادونې وړ ده، چې ډرامو ئې ډېر محبوبیت ترلاسه نه کړ.

د نوموړي د ژوند ډېره برخه په میونیخ کې تېره سوه. هغه د خپلو هم فکرو ملګرو په ملتیا د ریالیزم مکتب مخالفت وکړ.

په (۱۸۶۴م) کې (دوهم میکسیملین) مړ سو. نوي پاچا (دوهم لډوګ) تر څه وخت وروسته د یوې موضوع له امله هغه له دندې ایسته کړ، خو هغه بیا هم دوبې په میونیخ کې تېراوه. کله چې ئې نوبل جایزه وګټله، نو هغه د میونیخ افتخاري ښاري وګڼل سو.

د نونسمې پېړۍ د دوهمې لسیزې د نیمایي په وروستیو ورځو کې چې (هنریک ابسن) او نور ځوان ادیبان را پورته سول او په ادبیاتو کې د ریالیزم مکتب ته پاملرنه ډېره سوه، نو هغه هېر کړه سو. که څه هم پاول هیس د نویو ادبي مکتبونو سره د ټکر له امله تر نیوکو لاندې وو، خو بیا هم ځیني نامتو کره کتونکي په دې نظر ول، چې د انساني بدمرغیو د بیان له امله نوموړي د (بالزاک) او (کیلر) غوندې د سترو لیکوالو لار په مخه واخیسته.

که څه هم هغه د یو شاعر په صفت ښکلاپوهنې (ایستیتکس) ته بنسټیز ارزښت ورکړ، خو که د تاثریت او فطرت نګارۍ له شور او غوغا څخه ډکې نړۍ ته وکتل سي، نو د نوموړي جمالیاتي نظریه تر وخت تېره ښکاري.

هیس د لومړي صف له مترجمینو څخه ګڼل کېدی. هغه د ایټالوي، هسپانوي، او انګریزي ژبې څخه څو آثار جرمنۍ ژبې ته وژباړل.

پای

ټولوونکی: رزمي

## ګل خبرې

- قدرت باید تل تر څارنې لاندې ونیول سي، هغه قدرت چې په پټه او په تېره بیا د ملي امنیت په پلمه چلول کېږي دوه برابره خطرناک دئ.
- په عصري ټولنه کې د هغو خلکو څخه وتښته چې هیڅ شي ته عقیده نه لري.
- که ته د خلکو په باب تبصرې کوې نو د هغوی د دوستۍ چانس د لاسه ورکوې.
- نړۍ د ژوند کولو له پاره خطرناکه ځای دئ، دا د هغو خلکو له امله نه ده چې خراب کارونه تر سره کوي بلکې د هغو کسانو د لاسه ده چې د بدیو مخنیوی نه کوي.
- په تړلي موټ د لاس روغبړ نه کېږي .
- موږ ټول وایو چې د سولې سره مینه لرو خو د هغې په خاطر هغه راز زخمونه نه منو چې د جګړې په خاطر ئې منو.
- نبوغ په سلو کې یو الهام دئ او په سلو کې نهه نوي د خولو تویول دي.
- زحمتکښي د انسان د کرکټر ښکارندوی ده، یو شمېر خلک خپل لستوڼي را نغړي، ځیني کسان خپلې پزې په هوا نیسي او ځیني خلک اصلاً هیڅ حرکت نه کوي.
- ځیني خلک د ژوند له پاره په تلاښ کې دونه ورک دي چې ژوند کول ئې پر مخ هېر کړي دي.

# اغېزه ناکه مذاکره

ليکوال: کين لاسن، ايم. اې، اي ډي. ايم
ژباړه: **سعيد لودين/کاناډا**

(اتمه برخه)

اوس چې تاسې په دې پوه سواست چې په غور اورېدنه څنګه کېږي، نو د دې کار درې ډېر مهم اړخونه او علتونه هم ځان ته معلوم کړئ چې ولې بايد دا کار وسي: دا ستاسې د خپلو ګټو له پاره ګټور تمامېږي، دا ستاسې د حريف و غوښتنو ته مثبت جواب دئ او دا تاسې دواړه و دې ته هڅوي چې صرف او صرف د خپلو موقفونو په اړه فکر و نه سي.

۱- ستاسو غوښتنو ته څنګه ګټور تمامېږي؟

صرف په غور اورېدل دي چې تاسې به د مقابل لور په ګټو او ورانديزونو په پوره توګه وپوهوي. په مذاکرو کې ډېر کم داسې پېښېږي چې دواړه لوري دې يو و بل په غور واوري خصوصاً چې بيا پر سختو او لويو موضوعاتو جوړې ته رسېدل ګران وي ځکه په مذاکرو کې غوښتني ډېرې وي او د غوښتنو ټکرونه هم ډېر وي. يوه خوا لا دا توقع نه لري چې خبرې به ئې په غور اورېدل کېږي او په نتيجه کې ئې جوړې ناشوني سي.

۲- د مقابل لور غوښتنو ته څنګه جواب ويلای سئ؟

هر څوک دا خواهش لري چې توجه ورته وکړه سي او خبره ئې واورېدله سي او ستاسې حريف له دې څخه ماسوا نه دئ. هر وخت چې ته د مقابل لور و انديښنو ته چې اکثره وخت صحي انديښنې هم وي غوږ سې نو دا به هغه (مقابل لور) ته دا وښووي چې ته په جدي توګه توجه ورته لرې.

۳- دا کار به څنګه دواړې خواوې دې ته وهڅوي چې صرف د خپلو موقفونو په فکر کې نه سي؟

دا موقفونه به يو د بله دونده جدا وي چې جوړې ته به پر رسېدل ناممکنه وي خو که د دواړو خواوو زړو ته دا ولوېدله چې خبرې ئې په غور او توجه اورېدل سوې دي نو موقفونه به ئې هم نرم سوي وي. په دې صورت کې به نو تا ورته

ښکاره کړې وي چې ته د مقابل لور مشکلات درک کولای سې او صرف د ځان له پاره کار نه کوې.

## د حرکاتو ژبه

دا موضوع چې اوس ئې تر بحث لاندي نیسو نه یوازي دا ښکاره کوي چې موږ څه شي وایو بلکي د خبرو په جریان کي زموږ رویه، حرکات او آواز په څه ډول وي. دا غیر ږغیزي اړیکي دي. جسمي حرکات د مستقیمو (ژوندویو) اړیکو مهمه برخه ده. په غونډه کي د خبرو په وخت کي ستاسي جسمي حرکات مقابل لور ته دا ډېر ژر په ډاګه کولای سي چې تاسي په سر کي څه فکر لرئ او اصلي هدف مو څه دئ.

لاندي د جسمي حرکاتو ډېرو مشهورو نخښو ته مو پام را اړوم:

### ۱-واضح حالت:

واضح حالت، د خبرو اوریدلو دلچسپي، آزاد فکر او د دفاعي حالت نه غوره کول ښکاره کوي او په پلي کولو سره ئې د غونډي پر جریان کنټرول درلودل تضمینوي. د مقابل لور واضح حالت په لاندي ډول ځان ته معلومولای سئ.

- مخامخ او سیده در ته ناست وي
- لاسونه او اورغوي ئې خلاص او ښکاره وي
- سر ئې جګ او سیده نیولی وي
- بدن ئې ستاسي خوا ته (په دلچسپی) کوږ وي
- د خبرو په وخت کي دي ستر ګو ته ډېر په غیر جانبداره توګه ګوري

### ۲-مجهول حالت:

برعکس مجهول حالت د واضح هغه مخالف دئ. دا د دفاعي حالت، نه اورېدلو دلچسپي او د نظریو د بدلون ښکارندوي وي.

- بدي ئې سیده او مخامخ نه وي
- لاسونه او پښې ئې جفتي نیولي وي
- اورغوي ئې پټ او لاندي نیولي وي
- سر ئې کښته نیولی وي
- سترګي ئې کښته وي او یا د سترګو اړیکي نه درسره نیسي

## ستا د خپلو حرکاتو ژبه

د صحي حالت په غوره کولو سره به تاسي و کولای سئ چې خپل حریف و جوړي ته اماده کړای سئ چې دا کار بیا د اړیکو نوري لاري هم درته خلاصوي. تاسي خپل د مخ حرکات او احساسات هم به خپله ګټه استعمالولای سئ. د لاندي پوښتنو جوابونه تاسي د خپل بدن د له حراکاتو خبروي. هر یوه ته چې مو د منفي جواب ورکړ هغه ستاسي څخه کار غواړي.

۱- ایا ته د واضح حالت په غوره کولو سره لاسونه د پښو په مابین کي نیسې: هو - یا

۲- ایا ته و خپل حریف ته سیده او جګ ناست یې چې دا ورته وښووې چې د هغه خبرو ته غوږ یې؟ هو - یا

۳- ایا ستا وضع آرامه وي؟ او کوښښ کوې چې د نابېره پېښو څخه ځان وژغورې؟ هو - یا

۴- ایا ته کوښښ کوې چې پښې جفتي و نه نیسې او د فشار په سبب لاسونه په بغل کي و

نه نیسي؟ هو - یا

۵ - ایا تا کوښښ کړی دئ چي تیټ کښي نه نې چي عموماً له داسي حالت څخه د چا بې علاقګي ښکاري ؟ هو - یا

۶ - ایا ته پر خپل لاس د سر تکیه کولو مخنیوی کوې؟ چي له دې کار څخه ستا بې پامي ښکاري؟ هو - یا

۷ - ایا ته د خپل حریف وستر ګو ته په عادي ډول ګورې؟ او هغه هم رډ رډ کتل نه وي؟ هو - یا

۸ - ایا ته د واضح حالت په ښوولو سره پر څېرې آرامي ښیې؟ هو - یا

۹- ایا پر شونډو دي موسکا وي؟ هو - یا

۱۰ - ایا تا خپل سر شخ نیولی وي؟ هو - یا

۱۱ - ایا ته د یوه حیرانوونکي څه په اورېدلو سره آرام پاتېدلای سې؟ هو - یا

۱۲. ایا ته د یوه داسي څه په اورېدلو سره چي ورسره موافق نه یې آرام پاتېدلای سې؟ هو - یا

که غواړئ چي د حرکاتو د کنټرول هنر مو پرمختګ کړی وئ نو لازمي ده چي ډېر پر کټس وکړئ.

- د خپل آواز، د مخ حالتونه او بدن نیولو پر کټس وکه!
- په هینداره کي وګوره چي ته ایسې څنګه؟
- و هینداري ته داسي پوزونه ونیسه چي ته بې د مشکل په وخت او نورو حالتونو کي نیسې.

## پوښتني کول

لکه مخکي چي مو ولوستل، پوښتني کول او په غور اورېدنه د مقابل لور د ګټو و معلومولو ته د کیلی په څېر ده. په دې توګه د معلوماتو تر لاسه کول به تا ته د غونډي په جریان کي لا د حریف خامیاني او طاقت څرګند کړي.

بې بندشه پوښتني کول:

د پوښتنو کولو تر ټولو ښه طریقه آزادي او بې بندشه پوښتني کول دي. د داسي پوښتنو جوابونه تل تفصیلي وي. بندي پوښتني د بې بندشه پوښتنو مخالفه طریقه ده چي جوابونه ئې هم اکثره وخت صرف هو یا یا وي. بې بندشه پوښتني اکثره د (څنګه)، (څه شي)، (چا) او (چیري)، څخه پیلېږي. لاندي ئې څو مثالونه راوړل کېږي:

" ته څنګه فکر کوې چي مشکل به په څه ډول حل کړای سو؟"

"ستا په نظر کومه موضوع ډېره مهمه ده؟"

"په دې موضوع کي د ګډي موافقې نکته چیري موندلای سو؟"

داسي پوښتني داسي جوابونه زېږوي چي تر یوه حرف (هو - یا) اضافه وي. د احتیاط له پاره د ولي کلمه په ډېر احتیاط او غور استعمال کړئ ځکه دا به تا داسي وایسوي لکه د سوالونو توضیحاتي جوابونه چي غواړې او په دې نو داسي ایسوې چي ګواکي شکي یې.

د بې بندشه پوښتنو کولو تر ټولو شا هدف دا وي چي د حریف د ادعاوو سرحدونه معلوم کړه

سي او دا معلوم سي چې ستا معامله ستا حریف ته څونه مهمه ده. د مثال په ډول:

**۱- قیمت:**

- تاسي و قیمتونو ته څنګه کړنلاره لرئ؟
- ستاسي د تخفیف اصول څنګه دي؟
- که موږ خپل ارډر دوه چنده کړو، تاسي به کوم قیمت موږ ته راکړئ؟

**۲- توزیع او تسلیمي:**

- ستاسي د توزیعاتو خدمات د چا په لاس کي دي؟
- ستاسي د تسلیمۍ اصول څه شي دي؟
- ستاسي ګودام چیري دئ؟
- تاسي نورو کومو کمپنیانو ته شیان ورکوئ؟

**۳- کمپنۍ او حریفان یې:**

- نوري کومي کمپنیاني دا ډول شیان جوړوي؟
- له څه وخته په دې کاروبار کي یاست؟

ټولي داسي بې بندشه پوښتني او جوابونه به ستاسي سره ستاسي او د حریف دموقفونو په نیژدېوالي کي مرسته وکړي. ته به و کولای سې چې ځان ته معلومه کړې چې حریف دي په څینو برخو کي تر نورو برخو ډېر قوي دئ. د مقابل لور د جوابونو درکولو په وخت کي ئې حرکاتو ته متوجه سه، له دې لاري ئې کمزورۍ ځان ته معلومولای سې.

په خپل هدف یې پوهول

تر دې دمه موږ د مقابل لور و نظریو ته غوږ نیول او په هغو باندي پوهېدل وڅېړل. څه وخت چې مو خپل حریف په غور واورېدی، اوس نو ستاسي وار دئ چې خپلي نظریې او مشورې ورته وواياست او په وې پوهوی. یو ځل بیا باید یادونه وکړم چې دا خپل هنر او ډېره حوصله غواړي. ته باید دا یقیني کړې چې ستا جواب د مقابل لور سترګي او غوږونه ور خلاص کړي خو په دفاعي حالت کي ئې وانه چوي.

**۱- خپل فکر کولو ته متوجه سه:**

په عام ډول موږ اکثره دا فکر کوو چې د یوې مذاکرې له پاره تل دوې حل لاري وي: یا زما د نظریو تائید یا د مقابل لور د نظریو تائید. و دې ته (هغه یا دغه) ډول فکر وایي، په مذاکرو کي باید د دې ډول فکر مخنیوی وسي. د مثال په ډول که مقابل لور وایي چي:

"تا ته موږ یا خو کښته قیمت در کولای سو او یا لږ تعداد. دواړه نه سو در کولای".

ته داسي جواب ور کولای سې:

"زه ستاسي مشکل درک کولای سم خو زما د تجربې پر اساس ما ډېر ځله داسي لیدلي دي چې کښته قیمتونه د لږ تعداد له پاره و یوې داومداره معاملې ته لار هواره کړې ده".

داسي یو جواب به تا له (هغه یا دغه) ډول فکر څخه وژغوري.

**۲- د خپل حریف نظریې ورسره ګډول:**

که یو څوک داسي څه درته وواېي چې ستا له نظر سره مخالف وي او ته دا فکر کوې چې ته پر سمه یې، نو ښایي ته داسي څه ورته وواېي:

"زه دا درک کولای سم چي تاسي د لږ تعداد له پاره کښته قیمت نه ورکوئ لیکن زه هم نه سوای کولای چي پر اوږو نور بار واخلم".

دلته (لیکن) لغت ستونزه ده. په اولي جملې تا د مقابل لور تردید وکړ چي په نتیجه کي به ئې د هغه غوږونه کاڼه سي او نور څه به په غور نه سي اورېدلای. خو د دې پر ځای ته کولای سې چي د هغه (حریف) د موقف سره همنظره سې. ته د (او) کلمه کارولای سې. دا (او) ستا او د مقابل لور نظرونه سره یو ځای کولای سي چي په نتیجه کي به هغه تا په غور واوري. داسي یو څه ووایه:

"رښتیا هم زه په کښته قیمت او لږ تعداد پسي ګورم او دا څوک اوږد مهالو اړیکو او ګټو ته رسوي".

۳ – خپل د ځان په اړه وږغېږه نه دحریف په اړه:

د دې له پاره چي د مقابل لور غوږونه خلاص ور وساتې، د حریف د احساساتو د تشریح پر ځای خپل فکرونه او احساسات ور ته تشریح که. د دې معنا دا ده چي ته د (زه) حرف وکاروې نه د (ته). د مثاله په ډول که حریف مو درته وویل چي:

"زه نه سوای کولای چي د لږ تعداد له پاره د کښته قیمت غوښتنه مو ومنم".

داسي څه هیڅ وخت مه ورته وایه: (ته د دې مشکل د حل له پاره مرسته نه کوې".

بلکي داسي څه ورته ووایه: "زما په نظر که موږ پر کښته قیمت او لږ تعداد جوړي ته ورسیږو نو نتیجه به ئې اوږد مهالي اړیکي او ګټې وي". او یا:

"زما په خیال تر قیمت او تعداد ها خواته نوري ډېري ګټې سته چي موږ ئې باید په فکر کي ولرو"

د دې څخه مرام دا دئ چي د حریف مخالفت و نه کړل سی او هغه په دفاعي حالت کي وانه چوئ بلکي یوه بله ګټوره او ممکنه لار ور وښووئ.

۴ – هغه ځایونه په ډاګه که چي اختلاف پر لرئ:

کله چي دوه نفره مخامخ پر یوې باریکي موضوع مذاکره کوي نو اکثره وخت پر موضوع شاوخوا راګرځي او له دې ببري چي یو و بل خوابدي نه کړي اصلي نکتې ته نه راځي. دا د یوې کامیابي مذاکرې طرز نه دئ. تاسي باید په ډیر عادي ډول خپل د اختلاف ځایونه څرګند کړئ. دا کار باید په سرابښتوب و نه سي بلکي د حقیقت او د موضوع د نوري روښانولو په ډول وسي.

داسي یو څه ورته ووایه: "زه په دې پوهېږم چي موږ پر کښته قیمت او لږ تعداد نه سوو جوړ او ستاسي په اندېښنو هم پوهېږم او ما هم خپلي نظریې او وړاندیزونه درته وړاندي کړل. زما په ګومان موږ و جوړي ته رسېدلای سو خو که دواړه خپل کوښښونه وکړو".

## د طاقت کارول:

باور او عقیده د اغېزناکي مذاکرې کیلي ده خو که څوک دا کار و نه کړي نو بیا؟ اکثره وخت مذاکره کوونکي و طاقت بازیو ته مخه کوي. په داسي حال کي نو بیا په نرمۍ سره هیڅ نه سي تر لاسه کولای نو طاقت، اخطار او زور د ورځي

غوښتنه سي.

**د طاقت ډولونه:**

د مختلفو طاقتونو په پېژندلو سره به تاسي ته ستاسي خپلي کمزوری ځرګندي سي. لاندي د پنځو مختلفو طاقتونو لیست په ۱۹۵۹ کي د دوو ټولنپوهانو (فرینچ او راوین) له خوا جوړ سوي دئ:

**۱- د جبر او زور طاقت:**

دا هغه طاقت دئ چي یو څوک د هغه د خوښی خلاف څه کولو ته مجبوره کړه سي، یا خو د نوموړي پر خلاف څه وکړل سي او یا له هغه څخه د یو شي اخیستلو هڅه وکړه سی. په مذاکرو کي جبري طاقت اکثره د غټو کمپنیانو له خوا پر کوچنیو کمپنیانو تحمیلېږي چي کوچنی کمپنی داسي جوړه ومني چي یو اړخیزه جوړه وي (د غټي کمپنی په ګټه).

**۲- د انعام زور:**

د جبري طاقت په څېر تر لاس لاندي والی (تابع کول) د انعامونو په ورکولو خلق کېږي او د ښه کارکردګی په عوض کي د اقتصادي انعام په ډول ورکول کېږي. د دغسي انعامونو د نه ورکولو تهدید د جبري طاقت په ډول هم کارېدلای سي. یوه کمپنی به و بلي ته (انعام) ورکړي خو که د معاملې په جریان کي لږ سرغړونه وکړه سي نو بیا انعام بیرته ورڅخه اخیستل کېږي او ښایي نور تاواني عواقب هم ولري.

**۳- قانوني قوت:**

دا طاقت اکثره په داسي خلکو کي لیدل کېږی چي واک ولري، لکه اولسمشر، د پولیسو مشر او یا د کمپنیانو مالکین. په کاروباري دنیا کي داسي خلکو ته د کنټرول کوونکو په څېر کتل کېږي او اکثره وخت مذاکرې په خپله ګټه تمامولای سي.

**۴- د اثر او رسوخ طاقت:**

دا شخصي قوت دئ چي له شهرت، کشیش او خاص استعداد څخه جوړېږي، په کاروباري دنیا کي د لاسبرو کمپنیانو مشران اکثره د اثر و رسوخ طاقت لري چي په دې سره خلک آماده کوي چي د دوی هر څه واوري او په وې مني. دا د مذاکرو کي یو ډېر قوي طاقت ګڼل کېږي.

**۵- د مهارت زور:**

دا قوت له ډېرو معلوماتو درلودلو، پوهي او کسب څخه جوړ دئ. دا یوه ډېره قوي آله ده او کنټرول په لاس درکوي. د ډېري پوهي لرونکي لور پر مقابل لور ډېر ښکاره قوت لري.

**۶- نور:**

نور قوتونه هم سته چي د مذاکرې په جریان کي ځرګندېږي. یو اړخ ښایي د مذاکرې ځای کنټرول کړي او مقابل لور په عذاب کړي او یا ئي سم ښه راغلی و نه کړي. او یا ښایي یو اړخ د دریمي پارټی سره یو ځای سي او د دې اتحاد طاقت په مذاکره کي د وسلې په توګه وکاروي.

د خلکو طاقت او قوت درلودل اکثره وخت پر ګومانونو ولاړ وي. خلک کولای سي چي ځان د نورو په نظر د درک او مشاهدې د پوهي په واسطه قوي او طاقتور وایسوي. دوی تر مخه لا خلکو ته داسي احساس ور پیدا کړي چي دوي ډېره پوهه لري.

نو موږ ولي د دوی په اړه دا فکر کوو چي

دوی قوت او طاقت لري؟

**۱- دوی قوي ایسي:**

دا اکثره د دوی له قیمتي کالو، موټرانو او تاسي ته په ګرانو رستورانو کې له مېلمستیاوو څخه ښکاري. دوی ښایي له ځان سره مشاورین او نور خلک هم ولري چې له هغه څخه ئې لوی والي او قوت نور هم زیات سي.

۲- دوی د زورور اکټ (چمونه) کوي:

دوی داسي ایسوي چې د دوی شخصیتونه، مقامونه او کمپنیاني ډېري درنې او لوی دي.

نو موږ نه باید څنګه وساتل سي؟

د قیمتي کالو څخه ئې شروع که او یا ډېر قیمتي موټر کرایه که. لاندي سناریو ته ځیر سه:

"یو باغوان په پاکو او ښو کالو کي د مېوو او سبزیجاتو و یوه لوی دوکان ته په دې امید ورځي چې هغه به له ده څخه د خپل دوکان له پاره د ده د باغ او باغچې کرلي شیان ورڅخه رانیسي. باغوان د دوکاندار د توقع خلاف پاک او منظم دئ په داسي حال کي چې دوکاندار باغوان یو خیرن سړی تر زړه ایستلی وو. دوکاندار اوس هم پر حالت باندي لاس بری دئ ځکه که په دې ملاقات کي څه تر لاسه نه کړل سي نو پر ده (دوکاندار) به هیڅ اثر و نه کړي. خو که باغوان دا موقع د لاسه ورکړه نو به بې عقل وي، اوس نو باغوان څنګه کولای سي چې یوه ښه نتیجه تر لاسه کړي؟

د دې جواب په دې کي دئ چې باغوان و دوکاندار ته دا وښووي چې که و جوړي ته سره و نه رسیدل نو تاوان به ئې کړی وئ. لاندي ټولي نکتې د باغوان په حق کي دي:

۱- دوکاندار په دې معامله کي دلچسپي لري. که ئې نه درلودلای نو له اوله سره به و ملاقات ته حاضر سوی نه وای.

۲- مغازه ئې خواره مخ پر عامېدو دي او دا به د دوکاندارانو له پاره ګټور وي چې له باغوانانو سره و یوې اوږد مهالي جوړي ته ورسېږي.

۳- دا هم ممکنه ده چې دوکاندار دي له لیري ځایه و باغ ته راغلی وي او نه غواړي چې و جوړي ته د نه رسېدو په صورت کي د بل باغوان سره نور وخت ضایع کړي.

د لوړو نکتو په کارولو سره به باغوان وکولای سي چې پر مذاکرې باندي خپل دروند اثر واچوي او دوکاندار و داسي یوې جوړي ته اماده کړي چې دواړخیزه ګټونکي حالت وي.

نور بیا...

ټولوونکی: حاجي محمد رزمي

## ګل خبري

- د یوه دښمن لړل ډېر زیات دي او د سلو دوستانو لړل ډېر لړ دي.
- هغه څوک چې د کوچني شي په قدر پوهېږي ستر شیان لاسته وروړي.
- راتلونکي ژوند د هغو کسانو دئ چې د خپلو هیلو پر ښکلا باندي باور ولري.
- په هغه ورځ چې ته و نه خاندې هغه ستا د ژوند لویه ضایعه ده.
- خوښي هغه عطر دي چې تر څو پوري چې تا پخپل ځان نه وي وهلي بل چا ته دي خوشبویي نه رسېږي.

(۷)

# د کابل پېغله

(په زړه پوري اسلامي تاريخي ناول)

ليکوال: اسلامي مؤرخ: صادق حسين صديقي
ژباړن: ډاکټر نثار احمد صمد/کاناډا



### د بلوا عوامل

د غازي امير امان الله خان په رارسېدو سره د ده وفادار رعيت خورا ستره او بهترينه وفاداري وښودله. د افغانستان په تاريخ کې دا لومړنی موقع وه چې د ټولو قومونو او قبايلو مشرانو او مخورو په ډېر اخلاص او محبت سره د خپل پاچا هرکلی وکړ. د شوربازار حضرت هم د هغه خدمت ته راغی او د مبارکۍ تحفه ئې وړاندې کړه.

امان الله خان له اوږدې مودې راهيسې د خپل هيواد او خپل ملت بده ورځ په ډېر غور سره څېړله. کله چې واکمن سو، افغان ملت په خورا ناوړه او بد حالت کې شپې تېرولې. د نوي عصر تمدن او پرمختګ د هغوی څخه بې اندازې ليري وو. په ټول افغانستان کې د جاهلو پيرانو او نيمچه ملايانو تسلط خپور وو. دا خلک زوړپاله وو. نو ځکه ټول هيواد په محافظه کارۍ کې ډوب وو.

افغاني ښځې په بد ډول د رواج او کلتور په ځنځيرونو تړلې وې. نه د هغوی د احساساتو لحاظ کېدی او نه ئې هيڅ خبره اورېدله. ډېرو افغانانو په خپلو کورونو کې درې درې يا څلور څلور ماندينې لرلې. خو د هغوی تر منځ ئې قطعاً مساوات او عدالت نه مراعات کاوه چې له امله ئې د ښځو ژوند مخ پر تباهۍ روان وو.

په افغانانو کې ډېر داسې ټولنيز قوانين نافذ وو چې د شريعت پر ضد وو. مثلاً يو قانون دا وو چې که يو چا څوک وژلی وای نو په بدل کې به ئې قاتل د مقتول په کورنۍ کې يو

نرینه ته خپله لور یا خور په نکاح ورکوله چې دې ته ئې د «بلغا ورکولو رسم» وایه [ښایي «بلغا» چاپي غلطي وي - ژباړن]. بل قانون ئې دا وو چي که به یوه ښځه په کومه کورنۍ کي واده کېدله نو هغه به د دې کورنۍ میراث ګڼل کېده. یعني که به ئې مېړه مړ سو نو د هغه ورور ته به نکاح کېده آن که به هغه ماشوم وو، که به لوی وو، که به مجرد وو او که به متأهل وو.

په دې هکله د کونډې رضائیت یا نارضائیت هیڅ مهم نه وو بلکي حتماً به دا واده تر سره کېدی. کونډي ئې قطعاً د خپلي کورنۍ څخه د وتلو اجازه نه لرله. دغسي کونډه به ئې خپل میراث باله او په زوره به ئې واده ورسره کاوه. دغه رسم ته ئې د کورني وراثت نوم ورکاوه. د کوژدې پر مهال به ئې زوم والاوو ته څو منه خواړه (شیان) ورکول. د واده په ورځ چي به د ناوي په کور کي څومره انسانان او د ورا کسان ول د هغوی ټولو د خوړو مصارف په زوم والاوو پوري اړه لرله. د مَهَر مبلغ به په زرونو روپیو ته رسېدی خو د نکاح پر وخت به د زوم او ناوي خواوو دا فیصله کوله چي هغه باید ادا سي که یا. زیات وخت به هغه نه تادیه کېدی. نکاح تړونکي ته به د نکاح ویلو په عوض کي غټ مبلغ ورکول کېدی. ناوي ته به د رخصتېدو پر مهال لږ تر لږه پنځوس جوړې ورېښمین لباسونه ورکول کېدل او نور دغسي چټي رواجونه ول. خو په دغسي بې ځایه مصارفو سره هیڅ کومه کورنۍ، کوم ټبر او کومه قبیله نه نېکمرغه کېدل بلکي هر څوک به د پور تر درانه پېټي لاندي ول.

امان الله خان دا هر څه مدنظر لرل. هغه له اروپا څخه تر رارسېدو وروسته د هر څه نه اول ټولنیز سمون ته لاس واچاوه. د ټولنیزي اصلاح له پاره ئې یوه «نظام نامه» طرح کړه او هغه ئې د شورا غونډې ته وړاندي کړه. هلته تر ډېر بحث او غور وروسته هغه بې له کوم ترمیم او تنسیخ څخه منظور سوه چي فوراً د عملي کولو له پاره اعلان او خپره سوه. د دې مسودې محتوا په لاندي ډول ده.

نور بیا ...

ټولوونکی: حاجي محمد رزمي

## ګل خبري

- نژدې کسان مو تر هر چا زیات خوږولای سی.
- حتي غیر مذهبي کسان لا هم باید معنوي ارزښتونو ته عقیده ولري.
- د انسان تنزل هغه وخت پیلېږي چي پر ځان باندي د کامل انسان ګومان وکړي.
- د موفقیت لاره له ناکامیو څخه تېرېږي.
- ښه سر او ښه زړه یو پیاوړی ترکیب دئ خو که سواد لرونکې ژبه یا قلم ورسره یو ځای سي بیا نو یو ډېر اعلي شی ځني جوړېږي.
- د عزت غریبي تر بې عزته شتمنی ښه ده.
- مینه یوازي په مینه کولو سره زده کېږي.

# د عبدالرحیم هاتف لیکونه

(د عبدالظاهر څرک په نوم)

**یوولسم لیک**

۲۰۰۴/۴/۱۶

ګران الحاج عبدالظاهر جانه! السلام علیکم

هیله ده چې ته په خپله او کورنۍ او دوستان دې روغ جوړ اوسئ.

موږ خو کله چې پر ۱۲/ ۱۱/ ۱۹۹۹ له هندوستانه هالنډ ته راورسېدلو نو د عبدالهادي او فریدې پر کورو سر ببره په څلورو نورو سیمو کې اوسېدلي یو، پنځه میاشتې د هالنډ په یوه شرقي سیمه کې واوسېدو تر هغه وروسته یو کال په یوه وړه شمالي سیمه کې مېشته سوو وروسته د هالنډ یوې مرکزي برخې ته د دوو کلونو له پاره رانقل سوو او په پای کې اووه میاشتې بیا هغه لومړي ځای ته چې د هالنډ په شرقي برخه کې دئ ورغلو او تر څلور کاله او درې میاشتې وروسته دغه اوسني کور ته پر ۱۳/ ۲/ ۲۰۰۴ راکډه سوو چې ادرس ئې ما پخوا درکړی دئ.

پر ۲۷/ ۱۱/ ۱۳۸۲ د سهار پر اووه بجې تلیفون راورسېدی، تر سلام او علیک السلام وروسته دې پوښتنه وکړه، چې له خوبه خو مې راویښ نه کړې؟ زما لکه چې رېغ داسې درښکاره سو، لکه له خوبه چې وم. ما جواب درکړ چې یه. خو خبره دا ده چې د سپین ږیرتیا خوب د ځوانۍ له خوبه سره توپیر لري. په دواړه حاله کې ئې نوم یو دئ اما حال ئې یو له بل سره نه قیاسېږي. خو تر څو چا دغه دواړې مرحلې عملاً نه وي لمس کړې په تفاوت ئې هم سر نه خلاصېږي او فکر کوي چې خوب خو نو خوب دئ او یو خوب دئ.

دلته د مستمع ګناه نه ده ځکه دا د ژبې نیمګړتیا ده چې د مختلفو حالاتو د افادې له پاره د کلماتو کافي او مناسبه ذخیره نه لري، که داسې نه وای نو باید د طفولیت له خوبه څخه رانیولې بیا د کهولت تر خوبه پورې هر خوب یا د هرې مرحلې خوب بېل بېل نومونه درلودای.

ژبه یوازې په دغه مورد کې نه ده نیمګړې نور هم ډېر داسې موارد سته چې ژبه د هغو د افادې له پاره ښه برلاسې نه لري، مثلاً د رنګونو په عالم کې موږ یو څو متعارف نومونه لرو، خو تر هر نامه لاندې خورا ډېر رنګونه

راځي چې يو له بله سره توپير هم لري. څوک لږ څوک ډېر خو نوم ئې يو وي. مثلاً سور، شين ... همدا راز د ږغونو يو له بله سره د اهتزازاتو په حساب ممکن لايتناهي توپيرونه موجود وي، خو موږ فقط څو محدود نومونه ورته لرو. زير، بم، نرى، درونده، لوړ، کښته او داسي نور خو د اصواتو خورا ډېر اصناف د ژبې تر قاموس لاندي نه دي راغلي. خبره زما د خوب او ويښې په باب وه.

له ډېره وخته مي د انګرېزي متل پر خلاف چې وايي وختي بيدېده او وختي ويښېده، سړى روغ، بډاى او هوښيار ساتي. دا عادت سوى چې ناوخته بيدېږم، ځکه نو ناوخته ويښېږم او له يادو سوو درې واړه انګرېزي متل له ښېګڼو څخه لاس ناولى پاته يم. البته که ويښېدل د پاڅېدلو او کښېناستلو په مفهوم ونيسو اما که هغه ډول نه وي نو خصوصاً دا وخت د شپې په اوږدو کي ډېر ځله لټ پر لټ اوړم. له هرو اوښتلو سره تر ډېره وخته ويښ پاته يم، څو بيا مي د لږ وخت له پاره سترګي سره ورځي او په دغه مختصر وخت کي بيا يو څو مردود او مکروه خوبونه ووينم او بيا د اړخ بدلولو ته ضرورت پيدا سي.

دا چې ما تاسي ته منفي جواب درکړ او درته ومي ويل چې يه، له خوبه دي نه يم راويښ کړى زما دغه جواب د دغه ډول حالاتو په اعتبار وو. که چيري سمدم ويښ واى او مشاعر مي پوره په کار لوېدلي واى نو به مي د افغاني سلام په ضميمه کي دا هم درته ويلي واى، چې: ظاهرجانه ته خو ستا د سر په صدقه يو څه د ښبيو تخم راولېږه. او که ښبوى د سلطان محمد په شان په ونه لنډي وي دا به تر هغه ښې وي چې د مرحوم غلام نبي لالا په څېر جګي وي. خدايرحم کاکا دي خداى وبخښي هغه به دغه د لوپشتکيو ښبيو د بنفشه يي، آتشي، سپينو او نخودي رنګونو تخمونه درلودل او چا ته به ئې نه ورکول. د ځينو خلګو به دا خيال وو چې ګويا زه په دغه کنجوسي کي ورګډ يم، خو ما نه غوښتل د ده په کار کي مداخله وکړم. هغه وخت چې مي نه دي درته ويلي معنى ئې دا ده چې پوره نه وم ويښ سوى.

بله خبره دا ده چې د دنياداري په نړۍ کي د ګټي ډېري پټي او لڅي سرچينې موجودي دي، د تېلو له پاره خو د خپل پلار پر سر هم صرفه نه کوي. يا د کندهاريانو په ژبه لب نه کوي، که څوک د ځان د تقويې هڅه وکړي مزله ته تر رسېدو وړاندي به ئې سرخوړلى وي، شراب او سګرېټ ئې لڅ انحصار دئ خو هيروئين، کوکائين ... ئې پټ انحصار دئ. هغه منبع چې د خلګو له نظره وتلې ده او ډېره مهمه هم نه ښکاري هغه تليفون دئ، ئې هم د درامد وسيله ده هم د اطلاعاتو منبع. هر سلام وعليک د تليفون په کارۆ کي د سړي مخ ته د ډالر بيل ايږدي. او دغه ځاځکي د دنياداري درياب جوړوي. کله چې تا تليفون راکړى وو بايد ما خپل د کور د کېبلي تليفون نمبر درکړى واى چې تا ته کم از کم د موبايل او کېبلي تليفون د اجورې تفاوت په ګټه کي درپاته سوى واى، ګويا چې زه ښه ويښ نه وم که نه بايد خپل نمبر مي درته ليکلى واى او په دغه تليفون کي زما او د

سلطان محمد د شکري په باب ترخې خاطرې یادول یا د تېرو زمانو د بې خوند افسانو اعاده د دې موجب نه وای ګرزېدلی چې پر بې ارزښته بیان د خدای تر ابده د موبایل خرخ حواله سوی وای. که څه هم اغېزه به ئې کمه وای خو باید د دنیا دارو ګټه مو لږ کړې وای.

په هندوستان کې چې به کله چا په چا پسې تلیفون وکړ نو زنګ به ئې تر هغو شرنګاوه چې یو چا کوشکه پورته کړې وای، منفي یا مثبت جواب ئې ورکړی وای. یا هم له ډېرو زنګونو څخه تلیفون کوونکی په خپله ستخ سوی وای. دلته په هالنډ کې عادتاً درې څله او ندرتاً څلور واره زنګ وهل کېږي بالا ئې بسوي نو که تا تلیفون راکاوه هندي زنګونه به ښه وې ځکه چې تلیفون زموږ څخه څه لیرې دئ او ځکه چې تا د کال په وروستۍ میاشت کې تلیفون راوهلی وو او د دې خبرې امکان موجود سوی وو چې نوې جنتري به یا راوتلې وي یا به راوزي، باید د هغه له پاره مي هم غوښتنه کړې وای. که څه هم ما وروسته د شمسي کال جنتري قلمي جوړه کړه خو د سپوږمیز کال جوړول راته ګران وه، ځکه دلته سرې پاک آسمان مګر په خوب وویني او د سپوږمۍ حساب نابابه هم دئ.

ما خط دغونه لیکلی وو چې ستا تلیفون راورسېدی. درته ومي ویل چې ستا له پاره مي خط لیکلی دئ د کار په ورځو کې به ئې درواستوم خو تا د خپل خط پوښتنه وکړه چې هغه در رسېدلی دئ که نه؟

ستا خط نه وو رارسېدلی او تر اوسه لا هم نه دئ راغلی. خوا مي په دې بده سوه چې تا عکسونه هم ورسره ملګري کړي وه او عکسونه خو د تېرو زمانو د ښو شپو ورځو خوږې خاطرې تازه کوي. له ټولیو دوستانو سره بې غشه او خوندور وختونه د ذهن له اعماقو څخه و سطح ته راپورته کوي، ځونه به ښه وای که چیري رارسېدلی وای خو ستا څخه ستا له پېرزویني څخه په دغه اندازه مننه کوم لکه ما ته چې رارسېدلي وي.

د سلطان محمد لالا د نه رارسېدلي خط له پاره هم د زړه له کومې تشکر کوم ممکن بیا هم خط راولیکي، دی دې ژوندی وي.

عادتاً دلته خطونه نه ورک کېږي، خصوصاً چې ادرس سم لیکل سوی وي، فقط چې د ښار نوم او د پوستې کود د کور د نمبر سره ولیکل سي د سړي نوم لا هم ډېر لازم نه وي خط رسېږي. خو دا دئ کله کله ورک هم سي. دا نو د مرسل الیه په طالع پوري اړه لري.

د شبیو د تخم خو مي درته وویل چې په خط کې رارسېدای سي. ته به وایې خط په خپله نه در رسېږي ته سرباري هم پر ایږدې. که سلطان محمد خان زما خط نه سو ویلای مرسته به ورسره وکړې او دا هم ورته ووایه چې طبیب زما څخه د شکري دوا د امتحان په توګه د دوو میاشتو له پاره منع کړه. د دغه ټول تکلیف له پاره به وبخښئ، او سلام او احترام به مي یو وار بیا ومنئ کورنۍ او دوستانو ته به ئې هم ورسوئ. ښاد او آباد اوسې په مخه دې ښه، پر لوی او مهربان خدای دې سپارم.

مخلص هاتف

**دوولسم لیک**

۲۰۰۳/۱۲/۲۰

ګران الحاج ظاهر جانه! سلام الله علیکم!

خدای تعالی دي روغ جوړ، مطمئن او آرام ساته. د تېر اختر دي مبارک سه، روژې، لمونځونه، تراویح او عبادات دي خدای قبول که. دا دئ مسیحي کال هم نوی کېږي. نن ورځ د دوی غلبه ده، نو کال ئې که څه هم موسمونه دقیق نه سي سره بېلولای بیا ئې هم کال بین المللي کال دئ. نو له هغه بابته او دا چي لوی اختر رانژدې کېږي د هغه له پاره هم مبارکي درته وایم.

دغه وخت ستا تلیفون د ماپښین پر یوه نیمه د ۱۸/ ۱۲/ ۲۰۰۳ تاریخ سره سم راورسېدی. زاړه چرتونه مي له زنګه والوتل. ګورم به چي بیرته ئې احضارولای سم که نه. خو تر مسیحي کال پوري خبره وه د دوی د تقویم سره سم د حضرت عیسی علیه السلام معجزه آسا تولد هم پر ۲۵/ ۱۲/ ۲۰۰۳ سوی دئ، چي دا هم د کال سر نه ښيي. د دوی کال د موسمونو کرښې هم په قاطع صورت نه سره بېلوي، خو هم زور لري هم زر لري باید د دوی کال د هر چا کال وي او د دوی خبره د هر چا خبره وي. موږ ئې باید ومنو او یو و بل ته په دغه مناسبت مبارکي ووایو.

د فرانسې شیراک پرون اسلامي سرتړوني په رسمي ادارو او سرکاري مکتبونو کي منع کړل. وایي چي موږ دین او دولت سره بېل کړي دي او په دغه سلسله کي ئې د یهودیانو توپۍ او د نصرانیانو صلیب هم په رسمي ځایونو کي منع کړل، خو ده خپله د خبرو پر وخت نېکټایي تړلې وه؟! او د حضرت عیسی علیه السلام د تولد له بابته ئې داختر په ونو کي څراغان لګولي وه؟؟ حتی هغه واړه صلیبونه چي ښځي ئې په غاړه کوي هغه ئې هم د سینګار وسایل وګڼل او د هغو د مذهبي صبغې څخه ئې سترګي پټي کړې. څه به کوو، ګورو به ئې خو وینو به ئې نه. موږ بېځایه تېروتلي وو.

پسله اوږده عمره دا راښکاره سوه چي ډیموکراسي د خبرو آزادي ده نه د خبرو منل. هغه ځوک چي په خپل هیواد کي د خوبونو او اخبارونو او د خبرو د آزادۍ پر ته حکومت کوي هغه دکتاتور وي مستبد وي که صدام وي نیسي ئې او که ملا عمر وي زغلوي ئې. اما مشرف، سالم صباح، عبدالله، فهد ... بیا مسکوت پاته وي؟

که په ترکیه یاالجزایز کي د ډیموکراسۍ له لاري اسلامي احزاب قدرت ته رسېږي هغه وخت عسکري قیام ډیموکراسي وي او ډیموکراسي تروریزم وي. که شارون خلګ وژني، کورونه ورانوي، مځکي لاندي کوي، دی حق لري ځکه د ده اقدامات مخ نیوونکي اقدامات دي او که پسله ۵۴ کالو فلسطینان خپله مځکه غواړي شرط ئې دا وي چي اوس به نو اول باید د هشت افګني بنده کړي مقدم موخیر سي موخر مقدم.

کله چي د کوچنیانو ویني داسي تویوي لکه دوی ته چي د دې خبري امر له غیبو سوی وي، خو آسانه عذر ئې د کورنیو امیرانو له خوا دا وي چي په جنګ کي دغه ډول خطاوي هرومرو کیږي او جواز لري. اراده او قصد دخل

نه پکښې لري. دوستانه ګذار وو، هټلر تر اوسه محکوم دئ، ګناه ئې دا وه چې هغه دننه د يوه حزب حکومت کاوه او دکتاتور څکه وو چې تر لومړي عمومي جنګ وروسته د امن د ساتنې له پاره چې جامعه ملل جوړه سوې وه، ده هغو ته اعتنا نه کوله. په داسې حال کې چې اوس د امنيت شورا تر دوهم نړۍ وال جنګ را وروسته تقريباً دا ۵۸ کاله د جهاني امن د خوندي کولو مسئوليت لري. په داسې حال کې چې چا ئې پر سرنا غوږ نه ونيو. له کوره هغه درنه شوری سپکه سپانده هم سوه.

او جنګي اقدامات د ملګرو ملتو پر غړي دولت بې دريغه د هيچا بې اجازې او د هيڅ ډول صلاحيت د کسب پرته تر سره سوه. ملامت هغه څوک دئ چې په دغه کې ئې پلټنيان نه وروا ستول او پيسې ئې شلاوند نه کړې، عجيبه لا دا چې دا د آزادۍ دنيا د ديموکراتيکو ارزښونو د ساتنې امر بلل کېږي؟

کله چې ئې د روس څخه خپل د ويټنام د ماتې کسات د افغانستان پر مځکه اخيستی هيڅ شی د دغه هدف د لاس ته راوړلو له پاره ناجائز نه وو. هر تروريستي عمل او د ترياکو تجارت، د خلګو وژل، د وطن ورانول، د آزادۍ غوښتونکي جنګ په لار کي مجاز وو خو کله چې د ده چټه ورته واوښته نو هغه د آزادۍ غوښتلو قهرمانان بين المللي تروريستان سول او د هغو يوه بله برخه بيا د دې له پاره چې د سپر کار ځني واخيستلای سي بيرته مجاهدين سول. د آزادۍ د جنګ قهرمانان سول. اوس نو دا چې زما نظر دي د جاري لويي جرګي له پاره وغوښت بايد ووايم:

۱/دا لويه جرګه به تر دمخه لويې جرګې نسبتاً غنيمت وي، ځکه غړي ئې تر هغې لږ دي او اجنډائې تر هغې په زړه پوري ده. ممکن مسلح قوتونه هم په هغه پخوانۍ برم کې نه وي.

۲/ په عمومي صورت به هم دا جرګه په دغه نسبت ښه وي چې هغه خلګ پکښې راغونډ دي چې تل ئې د توپ او توپک په خوله خبري کولې خو اوس ښه دئ د کارتوسو پر ځای به الفاظ کاروي که څه هم د رشتيا اوريدلو له پاره لا زغم نسته، دا نوې خبره نه ده، د اوږده تاريخ ميراث دئ، د اوږده تاريخ له پاره به دوام کوي، بل ډول توقع سمه نه ده.

۳/ اما اصله خبره د قانون نه ده پخوا هم قوانين وه او د پاچا قانون هم ښه قانون وو. خو په چلند کې اخلاص نه وو ورسره مل موجوده انتشار د هغه قانون د عدم نفاذ نتيجه ده.

۴/ د قانون چلند که له يوې خوا په حکومتونو پورې اړه لري، له بلې خوا په خلګو پورې هم ډېر تعلق لري، چې بايد وئې منې. غاړه ورته کښېږدي، په پوه سي او په چلولو کې ئې خپله ګټه هم ووينې او ونډه پکښې واخلې.

۵/ د قانون په چلولو کې دوه ترازوګان موجود نه وي، لکه او س چې په بين المللي مناسباتو او قوانينو کې ليدل کېږي.

دا خو په مختصر صورت مثبت او منفي ټکي دي. خو پر هغه سربېره د افغانستان خلګ د افرادو په توګه يو له بله سره ورته دي، مګر د قومونو خورا ډېر تفاوت سره لري. دا خبره که په وطن کې نه ښکاري تر هيواد دباندې د انسان په سترګو ورننوزي. مثلاً که

پښتانه وګوري، د کندهار، هلمند او فراه د سیمي خلک د زابل، غزني، پکتیکا او پکتیا د پښتنو سره تفاوت لري او دواړه بیا د لوګر، میدان او ننګرهار، کنړ او لغمان د پښتنو سره ډېر تفاوت لري. د هرات، پروان، بدخشان او تخار خلک په بل عالم کي دي اوزبیک او ترکمن بېل احساس لري، هزاره خو لا پوهانو د افرادو برابري یوه خبره ده د اولسونو دا بله. زه نه پوهېږم هغه به کوم قانون وي چي د دا ټولو ټولنو ذهنونو او زړونو ته لار وکړي، اسلام تر څو سیاسي اسلام نه وو په افغانستان کي ئې یوازي سني او شیعه برخي درلودې، صوفیان لا یوازي د خدای تعالی په یاد مصروف اوسېدل. اوس خو په مسلماني کي هم تر ۷۲ زیاتي فرقې راوتلي دي. نو کوم قانون به وي چي هر چیري یو ډول انعکاس وکړي. یوه انتباه تولید کړي او هر څوک ئې په خپله ګټه تخمین کړي. زموږ اساسي پرابلمونه اول غربت دئ وروسته بې خبري، بې علمي او بېسوادي ده. مسکنت موږ ته تر خپل جېب او خپل نس ها خوا ته که څه شي زړه ته راولي هغه به زما کور، زما زوی، زمامېرمن .... وي. زموږ هیوادوال، زموږ هیواد تر غرو او رودو ها خوا ته دئ. حتی هیڅوک تر خپلي کوڅې او خپل قوم دباندي نه دئ وتلی.

او د بې سوادۍ نتیجه مو د دور په برکت دغه سرحد ته رسېدلې ده چي باخبره خلک د ړیري په طول او عرض او د مسلمانۍ په پنځو بناوو خبر دي. نور نو په دغه نه پوهېږي چي وطن څه حق لري او موږ پر وطن څه حق لرو. نتیجه دا ده چي د هیواد ټول اوسېدونکي تر هغه چي پر مرکز راغونډ سي له مرکزه څخه ئې توجه دباندي و هغې خوا ته اوړي چي د دوی د عزیزانو لو برخه هورې مېشته دي. د دغه کار نتیجه دا ده چي افغانان ډېر ارزانه له همسایه دولتونو له خوا استخدامېدای سي او د دغه واقعیت د پېژندلو په نتیجه کي ملګري ملتونه تر هغه چي قضاوت برحق وکړي د زور ورو پله نوره هم وردرنوي. او په سترګو ویني، خو د افغان په ګټه مداخله نه کوي له بده مرغه زموږ په هیواد کي کله نماینده حکومت هم نه دئ پیدا سوی او پیدا کول ئې هم زور غواړي، ځکه نو له موجودي وضع سره مخامخ یو.

په هر صورت په هرو بدو کي د ښو څرک مېندل کېږي او هر څونه مثبت امر چي هم ښه تر غور لاندي ونیول سي بشپړ نه وي. څه منفي اړخونه هم لري موږ باید په قضاوت کي پر یوه اړخ ډېر لنګر نه واچوو. د طالبانو د لومړیو وختو امنیت مثالي امنیت وو. نه باید د دوی سره یو ځای ښخ سي یا له یاده ووزي. همدا ډول د هغو بې تکلفه او ساده ژوند خصوصاً په لومړنیو شپو ورځو کي چي و خلګو ته د ورنژدې کېدو وسیله وه نه باید بعدي زعماء ئې له نظره وباسي، ښه ئې باید یاد سي کله چي ئې بد غندل کېږي.

همدا ډول اوسنی اساسي قانون باید تر هغه د وړاندي اساسي قانون سره پرتله سي، زما په فکر ډېر توپیر به نه لري، صرف په دغه قانون او جرګه میلیونونه ډالره مصرف سوي دي ولي باید د هغه اساسي قانون یادونه نه وسي او تر خاورو لاندي سي؟

دا بابولالي نو اوړدې دي او د ژمي اوږدې شپې ورته په کار دي. ستا د سر په صدقه مي پر ۱۹/ ۱۰/ ۲۰۰۳ د مولانا سلطان محمد خان سره تر ډېر وخت وروسته يو عالم بې مضمونه خبري وکړي که مخامخ واى دا به مي ورياده کړې واى چې دى هم د پخواني حکومت مخالف وو. چې وروسته نو بيا څه د خوشحالۍ شپې ورځي پر راغلي دي که نه؟ په هر صورت ته دي ژوندى يې د مولانا سره د خبرو تصور مي لا نه درلود، خو خوا مي په بده سوه، هم ئې مستي کمه سوې وه هم نشاط.

يو شکل رجوع او خضوع ئې له خبرو څخه څرګندېده. د ده له خبرو څخه چي يوولس کاله وروسته مي اورېدې د پنځوسو کلو خاطرې را په زړه سوې زما په سرعت تېرېږي. د ده خوار هم ټولي پرزې زړې سوي دي. سترګي ئې معيوبي وې. پر اپرېشن سربېره ئې هم د سترګو شکايت نه وو رفع سوى. له پښو هم لوېدلى وو. زه تعجب کوم چي دى ستا کوټې ته څنګه درختلى وو. زه چي اوس د احمدعلي اخندزاده د سراى زينې را په زړه کړم دلته مي غړي وتښتي. دى لا تر ما يو څو کاله زاړى هم دئ خو ښه وو د تليفون د څپو له لاري مو څه څه خواخوږي او همدردي سره وکړل. د شکري د ناروغۍ بيان مو سر ياد کړ کله چي ما د غلام رباني خان حاجي د صحت پوښتنه درڅخه وکړه تا ويل هغه ښه دئ شکره نه لري. له خدايه دي ارمان نه کوي خوشبخته سړى دئ. تر شاتو خوږ دئ تر قند شېرين او شکره نه لري، شکر چي نه ئې لري. غنيمت انسان دئ خداى دي ئې ژوندى لري خېر انديش او دعاګوى دئ.

د ويران صاحب مرحوم د مړيني ښه دي وکړه چي خبر دي کړم. که څه هم زما او د هغه تر منځ ترخه مناسبات نه وه رامنځته سوي خو د زماني شرايطو په نتيجه کي مو تماس قطع سوى وو. که څه هم دا کار زما له لوري نه وو پيل سوى خو چي تا خبر کړم په خپله مي هم ډېري دعاوي ورته وکړې او محاسن مي ئې ياد کړل، ځکه هغه د ښو صفتو ښتن وو. امين سړى وو، صادق انسان وو، پر انډيوالي ټينګ وو، شاعر وو، ظريف، نېک محضره، او خوش آوازه انسان وو. د مشرانو درناوى ئې کاوه، له هوسو ډک شخص وو، خداى تعالى دي د آخر عمر د خواريو عوضونه په جنت او مغفرت کي ورکړي. دغه کرښې مي لا نه وې پوره کړي چي تليفون راغى او وئې ويل چي نن ماپښين پر دوې بجې بځرکى هم د زړه د حملې په نتيجه کي مړ سو، خداى دي هغه هم وبخښي. (کل نفس ذائقة الموت).

اما په زاړه عمر کي نو بيا کومه بله مرحله غير له مرګه په مخ کي نه وي، بځرکى تر ما مشر وو، د درو اتيا کالو وو. دا نو ډېره متحوله زمانه ده، صدام حسين قيد سو. لو جرګه وپرانستله سوه، د کابل کندهار سړک افتتاح سو. هره ورځ خپلي خبري لري او که سړى په هغو مصروف نه سي عمر هم اوږدېږي او غم غمېږي.

خداى تعالى دي ژوندى، بريالى، صحتمند لره، د ورونو او دوستانو سره. الله دي مل سه، په مخه دي ښه. مخلص هاتف

هارون خپل شعشعي/ لندن

# وختونه او یادؤنه

(نهمه برخه)

## غمجن پسرلی

لږ و ډېر شل کاله کیږي، چي قِسمت د انګرېزانو و ویاړلي او ښاغلي ښار، لندن، ته راوستلم. که څه هم تر پلرني وطن په نس موړ، په تن پټ، په یوه مناسب کور کښي مېشت او د د دې ښار د عامو خلګو له نرخ او نوا سره سم څه مادي اړتیا نه لرم، خو پر دې تولو خبرو سربېره مي له هغې روحي څخه روح هیڅ ارام او کرار نه دئ لیدلئ، چي د ګران افغانستان له تودې غېږي څخه را بېل سوئ یم. له دې خاطره مي نو یوه روځ هم تښته له نیته نه ده وتلې؛ خو کله چي مي د زخمي او وزرماته مرغه غؤندي په ځان کښي نه د وطن، نه د جلاوطن پر لور د الوتلو واک او ځواک لیدلئ، نو ناچاره پر خپل ځای کښېنستلئ یم؛ او دا دئ کلؤنه کلؤنه په دې اندېښمن او کښناندده زړَه د ژوند او اؤمید له کاروان سره پر مخ درؤمم.

هر کال مي د نَوروز په الهام بخښؤنکي درشل کښي د مهاجرو مرغانو خوږې نغمې او د لارو او واټو په اوږدو کښي د مېوه دارؤ او بې مېوو ونؤ د رنګینؤ شګؤفو معطرې وږمې په خوږمن وجؤد او سرګردانه اروا کښي د میني او خوښي، نوې سا پوکي. د دې شاعرانه هوا و فضا په لیدو سره مي څو روځي بې اختیاره زړَه د پلرني چمن او ګلشن پر لور تېڼؤنه وهي؛ ښکلې او سمسوره «سرپؤزه» مي را یاد سي، چي پر تاریخي صلابت او مهابت سربېره د یخو چینو، سېرابه ولو، ډکؤ او معمورؤ باغو، شنو پالېزو، لنډه دا چي د بې مثاله تازګی، رنګینی، او شېرازی، مېنه وه. سمدلاسه مي زموږ او نورو کوڅه والو د کورو تر شا د «هندؤ باغ» او څو ګامه ختیځ لوري ته د «پښتؤن باغ» او نورؤ څرمه باغو سرې او سپیني شګؤفې جګي و سترګو ته و دریږي. د «فاضلِ کنداري» ابتدایې په زړَه خلاصه انګڼ کښي مي د دنګو

دنگو اکاسي ونؤ د خوشبویه خوشه يې ګلانو سپین نقره يې لاړؤنه او بالاخره په خپله فقیرانه جونګړه کښي مي د بزرګوار پلار په لاس روزلي رنګارنګ مُرسلان، جریبندان، پتنیان، شبۍ او داسي نور ښایسته ګلان د زړه په تاخانو او بالاخانو کښي د میني او مستۍ موجؤنه راوخؤتیي. اباسبات (عباس آباد)، ډنډ، ښارنؤ، د نوي احمدشاه لېسې منظمه اداره او ښه درسونه، د زړې احمدشاه لېسې د جګو او پیاوړو چنارانو په منځ کښي د فوټبال په زړه پؤري ټورنمینټؤنه، ډرېبلي سیدجان، تېز او چالاکه نعیم، دؤپایه نادر، ظاهر اڅکزی او ډېر نور نومیالي فوټبالران، د شیهدانو چؤک، سینما، هرات بازار، د احمدعلي اخؤنزاده په مُعطر سرای کښي د حبیب الله جان د انګرېزي ژبي کورس، د ښکارپر بازار د خولې په راسته خوا کښي د خوندوري پالودې او شیرېخو دؤکانونه، په کابل بازار کښي د هندوانو د ترخو سمبوسو او پکوړو، خوږو جلبییو او مټایانو دؤکانؤنه، ده خوجه، شاه بازار، ارګ، عیدګاه، کیپتان مدد چؤک، توپخانه، کابل شاه او څیني نور مي هر یؤ جلا جلا و سترګو ته پورته کښته سي. وروسته مي د پسرلي له دې سرو او سپینو شګوفو سره چَل (چهل) زینه، نارنج، خوجه (خواجه) خضدر، مامدزو (محمدزو) کلاچه، ماله جات، میربازار، پنجاؤ، ګوندیګان، مېروَیس مېنه، کوکران، باغِ پُل، پاشمول، پنجوایي، سپېروان، صالحان، ګیلان، کاغانک، پیرپایمال، بابا صاب، میراخوَران، سرکاري باغ، چارغؤلبه، لو او کوچنۍ مناره او داسي نور هم یو یو د زړَه پر تخت را شنه سي. البته، له دې معصومانه یادو سره مي د ارامۍ او سوکالۍ هغه خواږه وختؤنه و سترګؤ ته ودرېږي، چي شرمښ او وري به د ذاتي کرکي او دؤښمنۍ تر څنګ، پر یوه ګوُدر اوبه چښلې. د سترګو په رپ کښي مي همصنفیان، معلمان، خپلوان، اندیوالان، همسایه ګان، دؤکانداران، لنډه دا چي د کوچنیوالي د سپېڅلي او بې غمه ژوند ټول ښه و بد د یوه مستند فیلم د ښلابېلو صحنو په شان، جلا جلا تر نظر تېر سي. په سوچو او فکرو کښي مي ډوُب کي. کله مي وخڼدیي؛ کله مي و ژړیي؛ کله مي له ځان او جهانه بېخوَده کي. څه سر به مو ګرزوَم، وروسته مي د دغه روحاني سفر په ترڅ کښي د خوبو او خیالو لړۍ و کابل ته هم پسي وغزېږي؛ میوَند جاده، زرنګار پارک، انصاري لیسه، کوټهٔ سنګي، خوشال مېنه، کارتهٔ مامورین، سیلو، پولیتخنیک، کابل پوهنتون، حقوقو او سیاسي علومو پوهنځی، پُلِ باغ عمومي، باختر آژانس، مکروریان، دِهغوانان (ده افغانان)، خیرخانه، علومو اکاډیمي، د دارالامان او تاج بېګ مانۍ او داسي نور مي ورکؤ یارانو غؤندي د زړه پر اسمان توري اوریځي او توپانؤنه را ولاړ کي.

که څه هم له دې ښکلو خاطرو او رنګینو یادو څخه اوس څو لسیۍ/لسیزي تېرېږي، خؤ هره صحنه يې زما د زړَه پر لوحه داسي نخش سوې ده، چي ته به وایي هر څه پرؤن پېښ سوي دي. د خوښۍ او سوکالۍ په ځینؤ صحنو کښي خؤ کله کله داسي انګېرم لکه مخامخ چي ور ته ولاړ یم؛ او په ټولؤ حواسؤ يې

له خوشبويۍ او تازگۍ، ښکلا او تماشا څخه خوند اخلم. ښايي د دغه روحاني حال و مجال له سَوَبه دئ، چي د پسرلي په شپو او ورځو کښي مي هيڅکله له لندنه پر بلي خوا پښې نه ځي.

په ډېري خواشينۍ، سږني پسرلي نه يوازي د وطن د شگوفو او گلانو په رنگين ديدار مشرف نه کړم، بلکي برعکس يې د زهرو داسي تريخ غوړَپ راکئ، چي تر اوسه يې سدوبد راڅخه ورک کړئ دئ.

عزيزانو! د تېر نَوروز د را رسېدو شپې او ورځي وې. ما بيا هم د لندن د مرغانو په خوږو نغمو او زړَه پارونکو شگوفو کښي د سرپوزې د سرو او سپينو شگوفو وخوږو خاطرو ته ستر گي نيولي وې، چي نابيره له دوستانو څخه چا د کابل ښار په زړَه، د اسمايي او شېردروازې په لمنو، د شادوشمشېرې د تاريخي ماجت په څنگ کښي، د يوې معصومي افغان پېغلي، فرخندې، د وحشيانه وژني په دردناکه پېښه خبر کړم.

په تېرو څو دېرشو کالو کښي مي د بې گونا افغانانو د ظالمانه وژنو او شکنجو ډَوَل ډَوَل پېښي ليدلي او اروېدلي وې، خو د هيواد د مرکز، کابل ښار، په زړَه کښي مي، په سپينه روځ، د «متمدنو او بافرهنگو» لنډغرو د خپلسرۍ او ځنگلي عدالت داسي مثال هيڅکله نه چيري ليدلئ او نه چيري اروېدلئ ؤ.

واردواره خو مي هيڅ باور نه را تئ، چي د يوه ملک، يوه ښار، يوه قوم، يوې قبيلې او يوې کورنۍ غړي دي خپله خور، خپله لور، خپله عزيزه، خپله کوځه واله، خپله وطنداره او خپله همسايه تر وحشيانه وهلو ټکولو وروسته په خپلو لاسو د اور په لمبو کښي لولپه کي. ما په کابل کښي هيڅکله د وحشت او بربريت داسي مظاهر نه وه ليدلي. کابل په معاصرو وختو کښي زموږ د وياړلي هيواد د فکري ازادۍ او فرهنگي رنگارنگۍ د روزني او پالني تر ټولو ښکلی او په زړه پورې ښار ؤ. خير، وروسته د خبرونو او فيلمونو په خپرېدو سره روښانه سوه، چي د کورمغزو او تورزړو لوچگانو د سفاکۍ او بېرحمۍ داستان تر هغه ډېر دردناک او سوزناک دئ، چي ما ته په پيل کښي ويل سوئ ؤ.

په گرده ښار کښي د موري زوی، که «فېمينيستان» وه که «چپيان» وه که «عياران»، هيڅا هم د يوه معصوم انسان د داسي فجيع او شنيع وژني د مخنيوي دپاره د حماسې او قربانۍ و ميدان ته ور و نه دانگل؛ ښکارېدله چي هر چا د «شوله ايته بخور و پرده ايته بکو» په دود چيري سرونه نيهام کړي وه. تر ټولو دردونکې خو لا دا وه، چي د ښاريانو د ژوند، ناموس او مال «وينو او غيرتمنو ساتونکو» هم له خپلو توپکو، برچو او نور جنگي ساز و سامان سره، په سره سينه، د وحشي جانيانو د خونړي جنايت ننداره کوله؛ حال دا چي په دوو - درو هوايي ډزو سره يې په ډېري اسانۍ کولای سوای د دې معصومي او مظلومي پېغلي پر نازک او لطيف وجود د خوږو لبوانو د دغه وحشيانه تاړاک مخه ونيسي.

دا زړه لړزوونکې ناورین د بدخشان، بادغیس، نیمروز، کونړ یا بل لیري پراته ولایت په کمه لیري سیمه کښي نه، بلکي د هیواد د مرکز یا پلازمیني په زړه کښي پېښي سوئ ؤ، چي له ارګ، دفاع او داخله وزارتو او مهمو امنیتي – استخباراتي ادارو څخه تر یوه میل زیات واټن نه لري.

دغو شرایطو او حالاتو ته په کتو سره، ایا د جګو ډېرینو یا سیمېټي دېوالو تر شا، په پرتمینو ماڼیو او ودانیو کښي ناستو «صاحبانو» د خپلي «پاچهۍ او ارباۍ» په زړه کښي، دا څو ساعته ناتار نه لیدئ؟! کې (که یې) سترګي پټې او غوږونه کاڼه وه، ایا بل چا هم د دې وحشیانه بلوا خبر ور و نه رساوه؟! ایا دا ترخه واقعیتونه د دې مانا نه لري، چي د هیواد د مرکز امنیتي– استخباراتي ادارې، د جنګ او بدامنۍ په داسي حساسو او خطرناکو شرایطو کښي، د مرګي په خوب بیدې وې؟! که داسي نه وه، نو ولي چا پر خپل وخت د خپلسرو محتسبینو د دې حیواني راج او تاراج مخه و نه نیوله؟! وروستۍ پوښتنه دا ده چي که خپلو «وینښو او غیرتمنو ساتونکو» او «غمخورو واکمنانو» د بیري، مصلحت یا څه نورو پلمو په وجه د ژغورني هیڅ هڅه و نه کړه، آد سولي، امنیت، ډیموکراسۍ، بشري حقوقو، ښځینه حقوقو، ترقۍ او سوکالۍ په نامه ځای پر ځای سوو څوملیتي لښکرو ولي د دې زړه چاودوونکې فاجعې پر لیدو ځانونه ناګاره واچول؟!

عزیزانو! څه لنډي او اوږدې به در ته کوم، د تاریک فکرۍ، بې غیرتۍ، بې پروایۍ او بې کفایتۍ د داسي زړه چاودوونکو صحنو په لیدلو سره مي نور پر ښتاني اروا په پلرني کور او د کلي و ښار په کوڅو او واټو کښي د ګرزېدو راګرزېدو هیڅ موقع و نه موندله؛ د مرغانو د زړه وړوونکو ترانو او د مهاجرو توتکیانو د ښکلو تماشو له خوند او خوښۍ څخه بې برخي سوم؛ د پسرلي د رنګینو شګوفو او ګلانو تاندي غوټۍ مي تر غوږېدو مخکي و سترګو ته و رژېدلې؛ له هغو سره مي د کوچنیوالي او زلمیتوب د خوږو یادو او خاطرو روحاني فضا هم له زړه او دماغه و وتله. خدای شاهد دئ، چي پر مات او خوږمن زړه یې د سوز او درد نوي اورونه را! بل کړه. مبالغه نه ده، که و وایم چي وحشیانو د یوه معصوم انسان په قتل سره زما غونډي زرونو نورو زړونه هم قتل کړه.

تر څو روڅو بېحالۍ او بېهوښۍ وروسته زړه د حال په ژبه را ته وویل:

هارونه! سترګي خلاصي که! ستا د خوږو خوبواو خاطرو ټاټوبی، ګران افغانستان، اوس هغه وطن نه دئ، چي د پسرلي د شګوفو او ګلانو معطرو وږمو بې (به یې) د افغانانو په زړو او دماغو کښي د ژوند، میني او اوښدو الهام بخښوونکې روح پوکله. په دې ویرجنه او دردمنه خاوره کښي، نه تېرو شپږ دېرشو کالو راهیسي، پسرلی هر کال د خوږو وږمو، ښکلو نغمو او مینه ناکو ولولو پر ځای د اورو او باروتو، وینو او اوښکو، مهاجرتو او حسرتو پیغامونه راوړي. په دې خزان وهلي او کنډر سوي چمن کښي د راز راز بلاوو او ښامارانو له شامته، د واقعي شګوفو او ګلانو تر غوړېدو پوري اوږده وختونه او مزلونه بویه!

په همدې تناظر کې چې موږ د اردو ژبې تاریخ لولو، نو دې نتیجې ته رسېږو چې په هند کې د فارسي ژبې د تسلط تر پای ته رسېدو وروسته، دا ژبه د هند په شمال کې د اشرافي طبقو د ژبې په توګه را څرګنده شوه. تر هغه مخکې اردو په هند کې د فارسي او عربي ژبو له لغاتو ډېره زیاته اغېزمنه وه، چې عام خلک به وربانديې نه پوهېدل، وروسته اردو د شاعرۍ او د مذهبي افکارو د بیان ژبه سوه، خو نثر ئې ډېر پېچلی وو، ځکه نو په اردو لیکلی متن به په پوهېدلو کې ډېر ګران وو. د لیکوالو ټینګار به پر دې وو، چې د نااشنا لغاتو او اصطلاحاتو د کارولو په وسیله په ژبه کې د لیکلو مهارت څرګند کړي، نتیجه ئې دا شوه چې د اردو نثر د لومړۍ دورې روایت له افکارو تش دئ، یوازې د رنګیني او شاعرانه ژبې جذابیت لري.

سر سید احمدخان یوازینی عالم وو، چې د اردو نثر د اسانه او علمي کولو تکل ئې وکړ. ملګري او همنظره کسان ئې د ده پر لاره ولاړل، خو د ده طرز دوام و نه کړ. ابوالکلام ازاد بیا د لیک له پاره له عربي زیات اغېزمن طرز خپل کړ. د اردو ژبې د علمي کولو یوه بله هڅه د هند په حیدرآباد کې د عثمانیه پوهنتون له خوا وشوه، خو هغه لړۍ هم په ۱۹٤۷م کال کې د هند او پاکستان د وېش پر مهال وشلېده. عثمانیه پوهنتون او انجمنِ ترقی اردو پر دې بریالي سول، چې له اروپایي ژبو ارزښتمن ادبیات اردو ته را و ژباړي، خو د خپلو تخلیقي ادبیاتو د نستوالي له امله د اردو ژبې په علمي کولو کې د دوی دا هڅه اغېزمنه ثابته نه سوه. کله چې بریتانوي حکومت په هند کې پوهنتونونه جوړ کړل او انګرېزي ژبه ئې د ښوونې ژبه کړه، نوې تعلیمیافته طبقې انګرېزي د خپلو افکارو د بیان له پاره د وسیلې په توګه خپله کړه، ځکه نو پوهانو په اردو ژبه د لیکلو پر ځای، انګرېزي د وسیلې په توګه انتخاب کړه. اردو له انګرېزي ژبې سره سیالي نه سوای کولای، یوازې د شاعرۍ او مذهب د ژبې په توګه محدوده سوه او د یوې ساینسي او علمي ژبې وړتیا ئې پیدا نه کړه.

د پاکستان تر ازادۍ وروسته که څه هم اردو ژبې ته د ملي ژبې درجه ورکړل سوه، خو د دې ژبې د ودې له پاره هیڅ هڅې و نه سوې او نه پکښې علمي او ساینسي آثار ولیکل سول. په اسلام اباد کې د ملي ژبې ادارې (نېشنل لېنګویج اتارټي) او کراچۍ پوهنتون د ساینسي او تخنیکي اصطلاحاتو په برخه کې ډېرې ژباړې وکړې، خو د نااشنایۍ له امله د لوستونکیو د پوهېدو وړ نه وې.

د محمود مرزا په وینا د شلمې مېلادي پېړۍ پنځوسمه او شپېتمه لسیزې هغه زمانه وه، چې اردو ژبه د لوېدیځو آثارو د ژباړې په وسیله پکښې غښتلې او غني کېدای سوای، خو په اوسني وخت کې- چې د پوهې او معلوماتو یو بهیر را مات دئ- دا قریباً له امکانه وتلې خبره مالومېږي.

په پرمختللیو هیوادونو کې هره ورځ پر هره موضوع سلګونه کتابونه چاپېږي، ځکه نو کېدای سي نور دا ممکنه نه وي، چې دغه ټول آثار دې اردو ژبې ته را و ژباړل سي. د نتیجې په توګه موږ ویلای سو، چې په اردو ژبه کې موجود علم ساکت او کنګل سوی دئ، ځکه نو له نویو افکارو او تصوراتو سره د ځان د اشنا کولو له پاره موږ اړ یو، چې په انګرېزي او نورو اروپایي ژبو نوي چاپ سوي مواد ولولو. د دغو شرایطو پر اساس، اردو ژبې د علمي او ساینسي کېدلو فرصت بایللی دئ.

